


د پښتو ټولنې د خپرونو پرله پسې ګڼه: ۲۴۳

# د درانیانو امپراتوري


لیکوال

یو. و. ګانکوفسکي

مترجم

پوهندوی دوکتور ګل محمد نورزی



مهتمم فاروق

خپرونکی

دافغانستان دعلومو اکاډیمي

د ژبو او ادبیاتو انستیتوت

# د مترجم مقدمه




«د درانیانو د امپراتورۍ په دوره کې (۱۷۴۷ - ۱۸۱۹) د پښتنو د تاریخ خاص ارزښت پیدا کړی دی، چې د همدې کورنۍ د حکومت لاندې د اول وار لپاره د پښتنو ټولې سیمې په یوه اداري مرکز کې راټولې شوې او متحد، آزاد د دولت جوړ شو.»

د درانیانو د امپراتورۍ جوړښت، سیاسي حالاتو، لښکرکښیو او بالاخره د امپراتورۍ د سرحدي پولو په باب په داخل او خارج کې زیات تاریخي معلومات په تیت و پرک صورت نشر شوي دي. اما دیو-و. گانکوفسکي تحقیق د نورو تاریخي آثارو سره ډېر توپیر لري. د ده توپیر د گانکوفسکي د موضوعاتو په کلاسفکیشن کې جوت څرګند شوی دی. د دغه مؤرخ په مجمل اثر کې د موضوعاتو تحلیل ور کړی دی:

۱ — د درانیانو امپراتورۍ مساحت او سرحدونه.

٤- اداري ویش او سیمه ییز حکومتونه .
٥- مالیات او مالیاتي سیستمونه ، د دولت عایدات او لګښتونه
٦- پوځ او پوځي سیستم .

د غه پورتني موضوعات چې د کتاب په شپږو فصلونو کې راغلي دي هر یو فصل په خپل ځای کې په زړه پورې معلومات لري ، کوم چې د مختلفو تاریخي دورو له آثارو څخه په ډېر تکلیف او زحمت سره راټول شوي دي . ددې کتاب په هر فصل کې د امپراتورۍ په مختلفو وختونو پورې مربوط موضوعات داسې بیان شوي دي ، چې دهغې ټاکلې دورې مشخصه موضوع د امپراتورۍ تر پایه پورې لوستونکو ته مواد ورکوي.
دمثال په طور کله چې لیکوال - ددرانیانو دامپراتورۍ په مساحت او سرحدونو باندې خبرې کوي . پدې برخه کې نه یوازې د احمدشاه دراني دسلطنت دورې (۱۷۴۷ - ۱۷۷۳) په سرحدونو او مساحت باندې خبرې ، بلکه د۱۷۴۷ څخه تر ۱۸۱۹ کال پورې پوره دوه اویا کلنه دوره . باندې بحث کیږي .

پدې ترتیب سره ویلای شو، چې په هر فصل کې دامپراتورۍ یو اړخ بیانیږي .

زمونږ په نظر ددې کتاب دعلمي موادو ارزښت پدې کې هم دی، چې هره موضوع د تاریخي ، سیاسي شرایطو د بدلون سره یوځای جوخت مطالعه کیږي . بلنده دا چې د کتانکو فسکې د کتاب

د نورو موضوعاتو سره تماس نه لري ، البته ځینې داسې نکتې یې لري چې په هغوی باندې دریدل لږ څه دغور وړ دي .

۱ - د کتاب مؤلف د خپلې مقدمې په سرکې لیکي : د دا تلسمې پیړۍ تر نیمایي پورې پښتني ټولنه په دوه ځنو طبقو وویشل شوه . دیوې خوا د استثمار ګروپ موټی اقلیت چې د قبایلو خانان او روحانیون یې را ټول ، او د بلې خوا د همسایه او بې ځایداده کسانو ( فقیرانو ) طبقه جوړه شوه .

د مؤلف د څه نتیجه ګیري ، چې پښتني ټولنه ، د اتلسمې پیړۍ په نیمایي کې یعني د پښتنو دامپراتوري ترجوړېدو وروسته یا لږ مخکې د ې د خاصو مساعدو سیاسي تاریخي شرایطو په نتیجه کې په طبقاتي لحاظ په دوه ځنو ، نه یوځلا کېدونکو طبقو وویشله شوې وې چې محصول یې د قبیلوي خانان ، روحانیون او بې ځایداده کسان یعنې فقیران وو ، نوموړي ویلای شو چې دا دول ویش ډیر د پخوا نه په پښتني ټولنه کې موجود و ، د مثال په توګه د تاریخ مرصع لیکونکی افضل خان خټک په خپل تاریخي اثر « تاریخ مرصع » کې موږ ته د سلطان محمود غزنوي (۹۹۸ - ۱۰۳۰ ) په یوځو نوکې دا تو تنو قبیلوي خانانو نومونه راکوي ، کوم چې د سلطان سره په ځ باتوانتوحاتو کې ګډون درلود او هغه دادي : « ملک خانو ، ملک داؤد ، ملک یحیی ، ملک احمد ملک محمود ، ملک عارف ، ملک غازي ، ملک مامون ( تاریخ مرصع

دسلطان محمود غزنوي په وخت کې دامپراتورۍ په کو مو سیمو کې ژوند کاوه. اسادا واقعیت خودانکار و ړ نه دی، چې د وی د پښتنو کومې سیمې اشغال کړې وې، هلته به د پخوا نه طبقاتي روابط موجود وو. دا هم ډېر امکان لري چې دوی دې د امپراتورۍ مرکز ته نږدې پراته وي. ترڅو کو لای شي دسلطان محمود سره ژر په فوځ کښې کې برخه واخلي. مونږ دا هم اشوو پلای چې دسلطان محمود غزنوي امپراتورۍ څې بې طبقاتي ټولنه وي، د دې امپراتورۍ مرکز هم د پښتنو سیمو په زړه کې پروت و. که چېرې د سلطان محمود امپراتورې بې طبقو ټولنه و منو، نو د غه علمي نظريه باید له نظره وغورځوو چې وايي:
دولت د طبقاتي ټولنې محصول او په یوه طبقه پا ندې د بلې حاکمې طبقې دسیاسي اقتصادي تسلط دساتلو لپاره منځ ته راځي. په افغاني ټولنه کې چې هر څو مره امپراتورۍ جوړې شوې او بیا له منځه تللې دي، ټولې د پاسني اصل له مخې څاملا منځ ته راغلې دي.
دا څنګه کېدای شي د اوسني افغانستان په زیاتو کلتوري مرکزونو کې دې لوی دولتونه او امپراتورۍ په تاریخي مختلفو دورو کې منځ ته راغلي وي، او پښتانه دې دیوه لوی اکثریت په حیث پدې تاریخي خاوره کې چې ددوی اصلي وطن دی، ژوند کړی وي، خو دنورو ژبو ویونکو ال او سیدو نکو لپاره دې طبقاتي ویش د ډېر پخوا نه منل کېږي، اما پښتانه دې په د اسې اوږده تاریخي دوره کې شامل کړه شي، چې اجتماعي مناسبات یې د نورو اولسونو سره بالکل بېل

د شوروي اتحاد مشهور تاریخ پوه و.ا.رو مادین دخپل اثر «د افغانستان تاریخ» په دوهم ټوك كې هم (د مسكو چاپ ١٩٦٥) دا نظریه وړاندې كړې وه چې په پښتنو كې فیودالي روابط د ١١ پېړۍ په دېرشمه نیمایي كې منځ ته راغلي دي، ١٩٦٨ كال په اخر كې نوموړي عالم خپله نظریه «د تاریخ نامه هرات» د تاریخي اسنادو په مطالعې سره وګرځوله. «تاریخ نامه هرات د سیفي اثر دي». مؤلف د غیاث الدین كرت (١٣٠٧-١٣٢٨) د دربار مؤرخ او شاعر و. سیفي هروي په خپل اثر كې د افغانستان په باب ډېر تاریخي اسناد موږ ته په لاس راكوي چې د هغه وخت افغانستان په څكله ډېر ګټور دي د نورو زیاتو په معلوماتو په جمله كې په افغانستان باندې د شمس الدین كرت (١٢٤٥-١٢٧٨) پوځ كشي دي. ملك شمس الدین غوري چې مركزي هرات و، د مغلو په زیاتي حمایې سره یې د پښتنو دولت د سقوط عوامل برابر كړل.

د نورو زیاتو تاریخي پېښو په جمله كې سیفي هروي یوه هم دډېكي چوڼي محاصرې او نورو موضوع باندې خبرې كوي. كومه چې د یوه پښتون جنرال سنډان له خوا یې كې زرتنه تكړه زړور ځوانانو (رعیت، نوكران او غلامان) اچول شوي وو. نوموړي جنرال تر هغه وخته پورې د دښمن په مقابل كې مقاومت وكړ. ترڅوتول دازادۍ په لاره

په ۱۳ میلادي پېړی کی د مستقل افغانستان موجودیت د دولت په صورت دا په خپله ثابتوي چې د پښتنو یوه برخه ډېره پخوا په طبقاتی ویش یوله بله سره بېله شوې وه او فیوډالي پروسه ډېره د مخه هلته عملي شوې وه ، چې نتیجه یې فیوډالي دولت و.

بنا پر دې تاریخي اسنادو و. ا. رومادین ۱۱ کاله د مخه په خپله نظریه له سره فکر وکړ او هغه یې سمه کړه ، نوموړي عالم داسې لیکي:

«په دیارلسمه میلادي پېړی کی د پښتنو په باب «د تاریخ نامهٔ هرات» تاریخي اسناد مونږ دې حقیقت ته ملتوجه مجبوروي چې په پښتنو کی د فیوډالي سردارۍ وجود هغه وخت کو سردارۍ نه ډېر پخوا قوت ل کړ و.» (نږدې او منځنی ختیځ ، مسکو - ۱۹۶۸ کال - ۲۲ مخ).

۳- یو. و. گانکوفسکی د خپلې مقدمې په لومړي مخ کی لیکي:

پښتنو د هندوستان ، ایران او منځنی اسیا د اوسېدونکو سره گاونډیتوب درلود. په کومو ... ی چې فیوډالي روابط ډېر پېړی پخوا جوړ شوي وو ، دا یې له هغو علتونو څخه و ، چې پښتني ټولنه یې لدې چې د غلامۍ دوره تېره کړي ، فیوډالي دورې ته مخامخ راتېره شوه.»

راځئ چې تاریخ مرجع ته نظر واچوو ، چې هغه د خپلې سیمې د یوه مترقي حاکم شیخ جیو په باب څه وایي: «... هغه وخت چې شیخ جیو ته ذوق د بندګانو د آزادولو وه . هرګاه چې غلام به مستغني ثي

قیمتي مواد په لاس را کوي . چې موږ ټوله موضوع د لته نه شو را
نقلولای ، ولې بدې کې شك نشته چې دغلامانو مسائل او خوشحال د تاریخ
، وضع د مؤلف په وخت کې د ده نه پخوا زمانه کې په زیاته اندازه
په افغاني ټولنه کې مروج وو. خوشحال خان په دستار نامه کې د او-
سني کو سره دغلامانو دروزنې په باب ډېرې خبرې کوي او په خپله
خوشحال خان غلامان لرل ، موږ هیڅکله دا نه شو ویلای چې افغانـي
ټولنې دې دغه تاریخي دوره نه ري تېره کړې . ولې اصلي موضوع
داده چې په افغاني ټولنه کې د غلامانو په اجتماعي فعالیت او رول
باندې خبرې وشي . او دغه دغلامانو موضوع د منطقې او پاپه اروپایي
هېوادونو کې دغلامانو موسسو تر منځ په توپیر باندې بحث وشي ! په
افغاني ټولنه کې د غلامي د دورې په کلي ډول ردول په هیڅ صورت
سره دواقعیت سره سر نه خوري.

بو. و. گانکوفسکی دخپل کتاب په مقدمه کې لیکي ، چې د درانیانو
امپراتوري دافغانانو لومړی دولت نه و ، بلکې د هغه د مخه په ۱۷
پېړۍ کې په ختیځ افغانستان کې د ختکو او افریدیو سرداری د
اقتصادي او اجتماعي مساعدو شرایطو په نتیجه کې منځ ته راغلی
وې . ولې دوی ونه کولای شول چې د کندهار او هرات د سردارېو په
شان د پښتنو زیاتې سیمې په خپله لمن کې راټولې کړې ، کوم کار
چې په ۱۸ پېړۍ کې دغلزیانو او ابدالیانو سردارېو سر ته ورساوه .

په امپراتورۍ کې شامل وې. دوی هېڅوخت په هغه هڅه کې چې د میرویس
د کورنۍ حکومت په کندهار کې د ملي ازادۍ د کامیابۍ په نتیجه کې
منځ ته راغلی و، او یا د هرات د ابدالیانو سردارۍ چې بالکل ازاده
سرداري وه، پوښی نه شو بللای.

په کندهار کې د میرویس نیکه کورنۍ له پوازې دا پر ان تاج په
خارو کې نسکور کړ، بلکه د مغلي امپراتورۍ د تابعیت یا محکومیت
تاپه هم څوك نه شو ور باندې وهلای. دوهمه دا چې مونږ د مخه وویل
چې په ۳، ملادي پېړۍ کې د پښتنو مستقل او ازاد دولت د افغانستان
په نوم موجود و، چې د هغه په باره کې د سیفي هروي اثر «تاریخ نامهٔ-
هرات» ځینې زیات تاریخي معلومات تر لاسه کولای شو.

دې نه هم چې ابتدا ته ولاړ شو. د غوریانو حکومتونه د پښتنو حکومتونه
وو. او تاریخ مرصع پدې باب مونږ ته داسې معلومات را کوي:

«هرگاه چې چراغ د سلطنت د آل د سلطان محمود سبکتگین پس له
سل شپیته او اته کاله په باد فنا مړ شه. تخت سلطنت د هغه ملك په
سلطان د غور زیب و زینت پیا موند. او سلطان شهاب الدین غوري
(مشهور په سلطان معزالدین محمد بن سام غوري) په تخت د غزني
جلوس وفرمایه. نوی قصد یې په تسخیر د هندوشه. او څو ځله له غزني
و هندوستان ته راغی. اول ځل د لاهور له حده وجا رووت او دویم ځل د
نهروا له ولایت بې مراده مراجعت یې وفرمایه. دریم ځل یې د واس زره

معزالدین ته چې عالیشان امرا دده وه فرمایل چې اقوام د تمام افغانان له

کوهستانه دغور راروان کړه په اطراف او جوانب یې دغزني دغرونو

متوطن او آباد کړه . چې هم محافظت د خلافت او هم کافران

د هندوستان پایمال کا . ملک معزالدین مطابق دحکم د اجماعت د پښتنو

خانه کوچ له کوهستانه دغوره راروان کړه او په اطراف د کندهار او

غزني یې واچول ...» ( تاریخ مرصع ۵۴ - ۵۵ مخونه ) دغوریانو

حکومت ته په خپل وخت کې د دې سیمې لوی قوت وه او دا لوی قوت

د غزنویانو د لویې امپراتورۍ د کلي زوال سبب شو او د غور واکدارانو

طبعاً په خپلو خلکو یعنې پښتنو ته یوازې په غور کې تکیه کوله بلکې

د غزني په استحکام او د هندوستان په نیولو کې د غور د پښتنو له قوت

څخه بې نیازه پاتې نه شول .

د سلطان محمود او دده د پلار سبکتګین په کورنۍ کې اګر چې سوچه پښتني

وینه نه چلیده ، ولې دوی هیڅکله نه شوای کولای چې د امپراتورۍ په اداره او

پادلوی هندوستان په نیولو کې یوازې په هغه پوځونو تکیه وکړي

کوم چې دخپل پلار سبکتګین څخه ورته پاتې شوي وو . نو ځکه مجبور وو

چې د پښتنو پوځي قوتونه ځان ته راجلب کړي په دې ترتیب سره ویلای شو : هر

فاتح چې د پښتنو خاورې ته راغلی شوی دی ، بولسل وروسته د همدې

خاورې د لرغوني تمدن د اسې څرې ګرځېدلی دی ، چې د تل لپاره یې د اصلي

وطن خصوصیات نه یوازې په پوځي لحاظ بلکه د روحي ساختمان له مخې هم

خو د هغه تاریخي ویاړ زمونږ د خلکو میراث دی .

**نتیجه :**

د یو. و. ګانکوفسکي «تاریخي اثر د درانیانو امپراتوري» هغه تاریخي ارزښتناک اثر دی چې ډېر کالونه به خپل علمي قوت وساتي کومې یاد نې چې دلته د یوه تاریخي ضرورت پر اساس مونږ مطرح کړې هغه هم شکل، د دې قیمتي اثر ارزښت نه شي کمولای، بلکه دا به ووایو چې د یو. و. ګانکوفسکي کتاب ډېر کالونه پخوا لیکل شوی دی د هغه وخت په شرایطو کې د پښتنو د تاریخ په باب ډېر آثار نه یوازې د لیکوال لاس ته نه شو ای ورتلای، بلکه د پښتنو لیکوالانو په لاس کې هم د هغه تاریخي اسناد موجود نه وو. دا چې وروسته مونږ نه شول کولای چې د خپل تاریخ په باب زیات تاریخي اسناد ترلاسه کړو، دې سوال ته زمونږ د خلکو تېر تاریخ په خپله ځواب ورکوي، کوم چې د خلکو د دښمنانو او خصوصاً د یحیی د خاینې کورنۍ په لاس کې پروت، او یا د خلکو دښمنانو خارجي اشغالګرانو زمونږ کلتوري ذخیره په غارت سره د ځان سره وړې وه . او زمونږ خلک د خپل دې تاریخي میراث نه بې نصیبه پاتې شوي وو .

د هغه کتاب چې د ثور انقلاب په پخوانۍ دوره کې ګرانو افغاني ورونو ته د مطالعې لپاره وړاندې کیږي، د ظاهر د کار د سلطنت په وروستي کال کې یوه برخه یې په «وږمه» مجله کې په ناقص ډول خپره شوې وه. د هغه وخت استبدادي او ضد علم سیاست زمونږ ته دا اجازه نه ورکوله چې د کتاب ټول محتویات په واقعي ډول چاپ کړو. ځکه په ناقص ډول خپور شو .

کله چې په افغانستان کې د خلکو دموکراتیک انقلاب د افغانستان د خلکو دموکراتیک گوند تر رهبري لاندې بریالی شو، د افغانستان د علومو اکاډیمی د علمي مجلس په تصویب سره د چاپ لپاره برابر شو.

اوس زموږ د ټولو علمي او کلتوري، اقتصادي پرمختګونو د الهام منبع د ثور ستر انقلاب، خلقي انقلابي دولت او د خلکو دموکراتیک گوند دی. د ثور خلقي انقلاب بریالی کېدو نه وروسته چې کوم علمي او اقتصادي کامیابۍ زموږ د زیار ایستونکو خلقو په برخه شوي دي هغه نه یوازې زموږ د وطن د شریفو خلقو له پاره ستر ې خوشحالۍ د ځان سره راوړې دي، بلکه د منطقې او جهان ټولو مترقي قوتونو له پاره رښتې په زړه پورې دي. زموږ خلک او گوند په ټینګه سره ګام په ګام د دغې ټولنې د جوړولو لور ته روان دي په کومه کې چې خوشبختي به د ګډو تودو او ټولو زیار ایستونکو میراث وي، په کومه کې چې به انسان په د بل انسان د لاس د محصول خپل کړو ته پوه نه سي، په کومه کې چې د ظلم ناوړه چلند او بې وزلۍ له سایه د ناامیدۍ اوښکې هیڅوک نه ویني، په کومه کې چې غریب او بډای به وجود نه لري، په کومه کې چې هر وطنپرست افغان د خپل ځانګړې کور په حیث ژوند کوي، په کومه کې چې ټول افغانان د علم او پوهې خوږه میوه په خپله وخوري، په کومه کې چې د ژبې، رنګ او عقیدې امتیاز نه وي، د دې زمونږ د ثور

چې د تاریخ ارابه شاته وګرځوي. د دوی شړل شوي نوکران، چې نور

زمونږ په پاکه خاوره کې د تل له پاره ځای نه لري، بیرته زمونږ د خلقي

انقلاب او زمونږ د شریفو زیار ایستونکو خلکو په ضد ترینه کیږي

وسله ور کول کیږي، دلته او هلته د دغو په شان خرابي پېښوي، خو

د امپریالستي دولتونو دا کوشش نه هم هیڅ ځای نه نیسي د کامیابي

کاروان پر مخ روان دی، په دغه ستر کاروان کې زیار کښ انسانان

د خپلو خوښتنو او امیدونو خوا ته د قهرمان په توګه پر مخ ورځي.

اوس چې دغه کتاب د ګران هیواد لوستونکو ته وړاندې کیږي، زه باید دا هم

په دا وایم چې که چیرې په کتاب کې د ځینو غلطیو سره مخامخ کیږي، هغه

به د مهربانۍ له مخې په نظر کې جدي ونه نیسي. دا ځکه چې دا غلطۍ به

قصدي نه وي.



# د مؤلف مقدمه



د درانیانو پاچاهانو په دوره کې (۱۷۴۷—۱۸۱۹) د پښتنو تاریخ خاص ارزښت پیدا کړی دی، چې د هندي کورنۍ د حکومت له لاندې د اول وار لپاره د پښتنو ټولې سیمې په یوه اداري مرکز پورې وتړل شوې او متحد آزاد دولت جوړ شو.

د درانیانو امپراتورۍ له جوړښت نه د مخه د پښتنو قبایلو میشته کیدو او فیوډالي روابطو پروسه (چې اجتماعي رابطې یې ما قبل التاریخ دورې ته رسیدل)، د پښتنو د قبیلوي ټولنې په منځ کې د ډېرې پخوا زمانې څخه روانه وه. دغه پروسه چې په تېزۍ اجتماعي مبارزې سره بدرګه کیده، په ټولو پښتني قبایلو کې یو ډول نه وه، بلکه په مختلفو قبایلو کې د دغه خصوصیات بیل بیل وو.

جا یرالده کسانو فقیرانو طبقه جوړ شوه .

د پښتنو دولت جوړښت لپاره دا سې شرایط برابر شول:

پښتنو د هندوستان، ایران او منځنۍ آسیا اولسونو سره ګاونډیتوب درلود، په کوم کې چې فیوډالي روابط ډیرې پخوا جوړ شوي وو.

دا یو له هغو علتونو څخه و، چې پښتنې تولنه یې له دې چې د غلامۍ تاریخي دور، تیر کړي فیوډالي دورې ته مخامخ را تیره شوه.

د پښتنو سیمو د دولتي اتحاد د چټکتیا لپاره، هم واقعیت د خارجي دښمنانو یعنې ایرانیانو او مغلي فیوډالانو په مقابل کې د مبارزې ضرورت و، کوم چې خپلواکي پښتون اولس استثمار او لوټ کړي و.

د مغلو امپراتورۍ او د ایران د احدحکومت زوال، او همدا ډول د منځنۍ اسیا فیوډالانو تر منځ داخلي جګړو په اتلسمه پیړۍ کې دې خارجي مساعدو سیاسي شرایطو احمد شاه درانۍ (۱۷۴۷-۱۷۷۳) ته دا موقع ورکړه چې د ټولو پښتنو ځمکې په یو واحد دولت کې را ټولې کړي او همدا ډول پښتنو فیوډالانو ته دا موقع پیدا شو چې د ګاونډیو هیوادونو اراضي ځمکې د خپل دولت سره وتړي.

د شوروي ختیځ پیژندونکو لکه: ب. ن. زهادیر، ا. ی. پ. پترو شیفسکي، ا. ی. م. ریسنر، س. پ. تولستوي، ا. یو. یاکوبفسکي او د پښتنو روپوهانو په آثارو کې د ختیځ هیوادونو هغه مهم سوال او نه

د سې هموسوا اونونه لکه: په پښتنو کې د ما قبل التاریخ اجتماعي روابطو زوال، د فیوډالیزم وده، د پښتنو دولت جوړښت تحقیق په مارکسیستي بنسټ وکړ. د درانیانو لویې امپراتورۍ د جوړښت او زوال عوامل یې وښودل د پښتنو دولت اجتماعي، اقتصادي نظام یې تحلیل کړ، او ده هغه طبقاتي تضاد یې را برسېره کړ. (۱)

شوروي افغان پېژندونکو: م. گ. اسلانوف، ل. ر. گوردن پولونسکي ن. د میکلوخه میکلای او و. ر. رومادین (اگرچې د دوی پوهانو مستقیماً د درانیانو دوره نه ده مطالعه کړې) په پښتنو کې د فیوډالي دولت جوړښت او په دوی کې د ما قبل التاریخ اجتماعي روابطو د زوال

---

(۱) د پښتنو تاریخ د درانیانو باد شاهانو دورې په باب د پروفیسر ا. ی. م ریسنر مهم آثار دادي: «په اتلسمه پېړۍ کې په هند کې د افغانانو رول» «د بحرالکاهل انستیتوت د پوهانو یادداشتونه، دوهم توک مسکو ـ لنینګراد، ۱۹۴۹ کال؛ «د درانیانو دولت جوړښت او زوال» («د منځني ختیځ هیوادونو نوی تاریخ په باب مضمونونه» مسکو، ۱۹۵۱)؛ («د پښتنو دولت جوړښت او په دوی کې د فیوډالیزم وده»

پرا بلمونو په مطالعه او تحقیق کې زیات کار کړی دی.(۲)

د ن. ای سمیونوی (۳) علمي کارونو څخه یواځې دا تلسمې پیړۍ په نیمایی کې د افغانستان پوځي تاریخ او په هغه وخت کې د هند او پښتنو روابطو ته وقف شوي دي.

ولی دا باید وویل شی چې د درانیانو امپراتورۍ پوځی سیستم او د دولتي نظام څېړنه لا تراوسه زموږ د شوروي ختیځ پېژندنکو د مطالعی

---

(۲) م. گ. اسلانوف. پښتني فلکلور (د تیزس رساله)، مسکو ۱۹۳۵؛ م. گ. اسلانوف، د روښانیانو اولسي نهضت او د هغه انعکاس د ۱۶ - ۱۷ پیړیو په پښتو ادبیاتو کې. «شوروي ختیځ پېژندنه» ۱۹۵۵، ۵ گڼه)؛ ل. ر. گوردن پالونسکي، په ۱۹ پیړی کې د هند پښتني قبایلو اجتماعي - اقتصادي او ټولنیز نظام. («د تاریخ مسایل»، ۱۹۵۰، ۳ گڼه)؛ په «(۱۹۱۳ - ۱۹۳۷ کالونو) کې د هند شمالي - لویدیځ سرحدي ولایت زراعتي روابط»، مسکو، ۱۹۵۳؛ ن. د. میکلای میکلوخه د پښتنو په لاس د ایران فتح (د تیزس رساله)، تاشکند، ۱۹۳۵؛ «په ایران کې د پښتنو حکومت له تاریخ څخه» («د لنین گیراد دولتی پوهنتون پوهانو یادداشتونه»، د ۱۹۵۳، ۱۷۹ گڼه)؛ و. ا. روماد ین د ۱۹ پیړی په اوله نیمایی کې د یوسفزیو قبیلو اجتماعي اقتصادي نظام. («د منځني ختیځ هیوادونو د نوي تاریخ په باب مضمونونه»)

(۳) ـ ن. ای. سمیونوا، (۱۷۶۱ کال د پانی پت په جگړه کې

خاصه موضوع نه وه گرځېدلې. د درانیانو د لوی دولت د داخلي جوړښت
پرابلمونه د لویدیځو هیوادونو پوهانو له خوا نه دي مطالعه شوي.
حتی د انگریزي تاریخ پوهانو ج. ما کمن او پ. سایکس په
شمول چې د افغانستان په تاریخ باندې یې خاص آثار لیکلي دي
د دې موضوع سره تماس نه دی نیولی (۴).

دغه علمي خالیگاه د افغاني مؤرخینو له خوا هم نه ده ډکه
شوې، کوم چې د افغانستان په تاریخ باندې آثار لیکي، اگرچې
د دې موضوع په باب په افغانستان کې ډېر زیات د علاقې وړ
واقعي مواد شته دي. له دې سره سره په افغانستان کې د درانیانو
د دورې د پوځي او اداري سیستمونو څېړنه د علمي نکتې نظره ډېره
په زړه پورې ده. داځکه چې د پښتنو تاریخ د دې عصر سره تړلو
مهمه تحولي دوره تړلې ده.

د پښتنې ټولنې د دولتي حاکم قشر څېړنه به بې شکه د افغانانو اجتماعي
اقتصادي روابطو ور تحلیل سره زیاته مرسته وکړي. داځکه چې د پښتنو
اجتماعي-اقتصادي روابطو په وده باندې حاکمه قشر زیاته اغېزه لرله.
دغه تحلیل به په خپل وار سره د هغو سوالونو روښانولو سره زیاته مرسته
وکړي کوم چې د پښتنو د لویې امپراتورۍ په جوړښت کې اغېزمن وو، د هغه

---

4— George Macmann, Afghanistan from Darius to Amanullah, London, 1929; Percy Sykes. A history of Afghanistan, Vol. 1—11. London, 1940.

ماتاره ولې لنډې مودې غوړېده وسره يې کومک وکړ، او بالاخره د هغه دزوال سبب شول. په عين وخت کې د هم امکان لري چې د درانيانو د اوی دولت څېړنه مونږ ته داسې ثابت او نسبتاً پريمانه واقعي مواد په لاس راکړی، چې د تحولاتي پروسو خصوصيات ورباندې وپېژنو، د پښتنو ځوان فيودالي دولت له غوښتنو سره اشنا شو، کومې چې د دوی د ما قبل التاريخ اجتماعي نظام بقايا ګڼل کيږي، او همدا رول به تر يوې اندازې پورې په پښتنو کې فيوداليزم د پيدا وښت د عمومي پرابلمونو په څېړنه کې زموږ سره مرسته وکړی. د دې تحقيق مقصد دا دی چې، د درانيانو امپراتوری دولتي او پوځي سيستمونه مطالعه شي.

د کتاب ليکونکی د پښتنو د دولت د جوړښت په عاملونو، د دولت په رول د يوه ورو کي قشر په لاس د لوی اکثريت استثمار رول، په دولتي سيستم کې د حاکمې ورې طبقې او لويو تودو (اساس) تر منځ روابطو، په فيودالي نظام کې د کرهڼې روابط د فيودالي حاکميت مختلف سياسي فورمونه چې د فيودالي ټولنې دودې په مختلفو دورو کې راڅرګندېږي، د دغو او داسې نورو اساسي سوالونو په څېړنه کې د مارکسيستي ـ لېنينيستي تعليماتو څخه الهام اخلی. (٥)

---

(٥) ـ د مارکسيزم ـ لېنينيزم اساس ايښودونکو د دو مهمو آثارو څخه په دې کتاب کې استفاده شوې ده:

کې. مارکس په هند کې برتانوي سلطنت (کې. مارکس او ف. انګلس

کليات، ... ټوک، دوهم چاپ؛ کې. مارکس، په هند کې د برتانوي ...

تر هغه ځایه پورې چې خبره په اساسي منابعو پورې اړه لري، نو موږ ويلای شو چې د دې موضوع لپاره د ختيځوالو افغاني، ایراني، منځنۍ اسيا، هندي (تاريخ ليکونکو اخبارونو څخه استفاده شوې ده، کوم چې د درانيانو د امپراتورۍ په زمانه کې اوسېدل. همدا راز د هغو اروپايي ګرځندويانو ليکونکو څخه مرسته اخيستل شوې ده، کوم چې د ۱۸ پېړۍ په نيمايي او د ۱۹ پېړۍ په لومړۍ برخه کې افغانستان ته راغلي دي. د روسيې د خارجي سياست د ارشيف مواد او هم د انګريزي پولو رسمي چاپي آثارو څخه هم ګټه اخيستل شوې ده.

دلته غواړو په لنډه توګه په هغو اساسي آثارو باندې خبرې وکړو، د کومو څخه چې په دغه اثر کې استفاده شوې ده:

په دې برخه کې زمونږ لپاره د حسين علي تاريخ «زينت تاريخها» ډېر د علاقې وړ دی. دغه اثر د ۱۸ پېړۍ په نيمايي کې د پښتنو په تاريخي پېښو باندې ليکنې لري، چې د احمد شاه دراني (۱۷۴۷-۱۷۷۳) د سلطنت دورې څخه د شاه زمان سلطنت تر وروستيو وختونو (۱۷۹۳-۱۸۰۱) پورې تاريخي پېښې پکې راغلي دي. د دې اثر مونږ ته يوازينۍ نسخه را رسېدلې ده

---

* کاپيتال، مسکو، ۱۹۵۵؛ ک. مارکس، د هند په تاريخ باندې تاريخي اقتباسونه. مسکو، ۱۹۴۷؛ ک. مارکس، د کاپيتالستي توليد د مخه فورمونه، مسکو، ۱۹۴۰ کال؛ ف. انګلس انتي ديورنګ، مسکو؛ ۱۹۵۷

چې اوس د شوروي ازبکستان (۹) د علومو اکاډېمۍ د ختیځ پېژندنې په انستیټیوټ کې خوندي ده. دغه نسخه اټوګراف ده او د ۱۲۱۸ هجري کال د صفرې په میاشت کې (۱۸۰۳ کال د جون په ۲۰ او ۲۳ یا په ۲۳) نقل شوې ده.

مونږ د دې تاریخ مولف نه پېژنو، ولې د هغو زیاتو ستاینو په اساس چې د دې اثر لیکونکي د تیمورشاه د شرزوي شاهزاده همایون په عنوان کړې دي، داسې ښکاري چې مؤرخ به د شاهزاده همایون له هغو جدي طرفدارانو څخه وي، کوم چې د شاهزاده لپاره یې د تاج او تخت مبارزه کوله. او دا مبارزه د تیمورشاه د راني د مرګ نه (۱۷۹۳) وروسته د ده د زامنو ترمنځ پیل شوه.

زینت تاریخها د، ی. کال په قول د مفهوم او محتویاتو له پلوه، د یرزیات «حسین شاهي تاریخ» ته ورته دی. «حسین شاهي» د دراني نوپا د شاهانو تاریخ دی، چې د شاه زمان د سقوط نه لږه موده د مخه امام الدین

---

(۹) حسین علي، زینت تاریخها (د شوروي ازبکستان د علومو اکاډېمۍ د ختیځ پېژندنې انستیټیوټ قلمي نسخه، ۱۶۲۲۶/۲۸۵ لمبر. د حسین علي تاریخ په زینت تاریخها باندې نوموړ مونږ د پروفیسر سیمیونوف په یادونې باندې استناد کوو (وګورئ: «د شوروي ازبکستان د علومو اکاډېمۍ د ختیځ و قلمي نسخو مجموعه» د پروفیسر سیمیونوف په اهتمام، ا. تو ک، تاشکند، ۱۹۵۲،

چشتي ليکلې دی. (۷)

دوهم مهم اثر چې مؤلف دخپل کتاب په ليکلو کې د هغه څخه مرسته غوښتي ده هغه د محمد امين ابوالحسن گلستانی تاريخ «مجمل التواريخ پس از نادر» دی. دغه تاريخي کتاب په ۱۱۹۵ هجری (۱۷۸۲) کال کې ليکلی دی. د محمد امين کتاب دوې برخې لري. په لومړۍ برخه کې د پارس په تاريخ باندې خبرې کيږي چې په ۱۷۴۷-۱۷۵۰ کالونو پورې اړه لري. په دوهمه برخه کې مؤلف د احمد شاه درانی په سلطنت باندې غږيږي. دواړه برخې د ۱۹ پيړۍ په وروستيو کالونو کې المانی ختيځ پيژندونکي و. مان چاپ کړې دي (۸). محمد امين دځوانۍ دوره په کرمانشاه کې

---

(۷)- ی. کال، د ترکستان عامه کتابخانې پارسي، عربي، ترکي قلمي نسخې تاشکند، ۱۸۸۹، ۹۶-۳۰۲ مخونه؛ د امام الدين چشتي تاريخ لپاره دغه اثر وگورئ:

Charles Rieu, Catalogue of the Persian manuscripts in the British museum, Vol. III, London 1883, P. 904-905, or 1662.

8— Ibn Muhammed Emin Abu'l Hasan aus Gulistane, Das Mujmil et—Tarikh—i badnadirije, Nach der berliner Handschrift herausgegeben von Oskar Mann (Fasc. 1. Geschichte Persiens in den jahren 1747 — 1750, Leiden, 1891, fasc. 11. Geschichte des Ahmedsah Durani, Laiden,1896.

د محمد امين اثر د مجمل التواريخ لپاره د دغه قلمي نسخې تشريحات هم وگورئ

Wilhelm pertsch, Die Hand schriften Verzeichnisse der Koniglichen Bibliothek. Zu Berlin, Bd. 4, Berlin,

تیره کړی ده . د دې ځای حاکم دنادر افشار په وخت کې د نادر افشار تره و. دنادر افشاردوژ لونه وروسته محمدامین ډیری سختي ورځې ولیدلې . دخپل ژوندخلاصون لپاره دی دکرمانشاه څخه بغداد ته وتښتیده . له هغه ځایه په ۱۱۶۹ (۱۷۵۶) هجری کال کې هند ته ولاړ.
اگرچې محمدامین د هغو پیښو چې دی یې په خپل کتاب کې راوړي، هم عصر دی، ولی بیاهم د هغه په کتاب کې ډیرې غلطی شته. د اسی فکر کیږی چې ددی غلطیو دلیل داوي چې دغه پیښی دی پنځه ویشت دیرش (۲۵-۳۰) کاله وروسته لیکی داکار به ددې باعث شوی وي چې ډیرې پیښې دده په حافظه کې سمې نه وی پاتی شوی .
دغه کتاب«حقیقت بیناوعروج فرقه های سکهان » هم ډیر په زړه پوری معلومات لري. دغه کتاب چې مؤلف یې څرگند نه دی په ۱۷۸۳ کال کې (۹) یوه هندي مؤرخ هندوب حسن با نرجی ترجمه اوچاپ کړ. مترجم فکر کوی چې د دې کتاب مؤلف به پخپله تیمور شاه درانی وي . داهم امکان لری چې دا اثر د تیمور شاه وي. داځکه چې تیمور شاه درانی ادبی مشغولتیا ته میلان درلود. په هرصورت پدې کې

---

9— "Hakikat-i-Bina wa Uruj-i Firkahi Sikhan.
A short history of the origin and rises of sikhs),
Calcutta, 1942

قلمي نسخه په کـتا لوگ کې دموراپې له خوا تشریح شوی ده.

(William. H. Morley, A dzs criptive catalogue
of the historical manuscripts in the Arabic and

شک نشته چې د دې کتاب مؤلف د ډیرو پېښو شاهد دی او هغه پخپله لیکلي . د غه کار د کتاب ارزښت نور هم زیاتوي . اگر چې هلته په کتاب کې نیټې نشته . هغه حصه چې د سکانو تاریخ لوسړی برخې ته وقف شوې ده هلته یو لړ غلطی موجودې دی .

د درانیانو امپراتوری پوهې سیستم پېژندلو ی لپاره د یوه داکې مؤرخ (کاشی راج پاندیت) اثرزیات په زړه پوری دی . کاشی راج پاندیت د نواب آوود سکرتر او د پانی پت په مشهوره جگړه کی یې (۱۷۶۰-۱۷۶۱) گډون درلود . کاشی راج پاندیت د اسلامی اتحاد د رهبرانو د نماینده په حیث د مرهټیانو کمپ ته ور تللای شو او هلته یې په زړه پوری معلومات جمع کولو لپاره امکانات ورته موجود و . کاشی راج پاندیت خپل کتاب ته د « بهاوونامې » نوم ورکړ . د غه کتاب د پانی پت جگړې نه ۲۱ کاله وروسته لیکل شوی دی . د دې کتاب ښیگڼه دا ده چې د سموالی او تاریخی موادو د زیاتوالی له مخې ډیر غنی دی . د دې خبرې دلیل دا دی چې کاشی راج پاندیت خلو یښت کاله د آوود په دربار کې خدمت کاوه او د رسمي اسنادو څخه یې آزاده استفاده کولای شوه . د کاشی راج پاندیت کتاب د فارسی نه انگریزی ته د جگړن ج . براوون له خوا ترجمه شو . براوون تر ۱۷۸۲-۱۳۳۵ کالونو پورې په ډهلی کې د برتانیې د سیاسی نماینده په حیثیت کار کاوه . د کاشی راج پاندیت فارسی کتاب انگریزي ترجمه په ۱۷۹۲ کال کې چاپ شوه . (۱۰)

---

10— Casi Raja pundit, An account of the battle and of the events leading to it ("Asiatic of Paniput,

د پښتنو پوځونو ، جنګي عمليا تو ، د هغوی تشکيلا تو په باب ډير په زړه پوری معلومات موږ ته شيخ غلام محمد سا مين را کوي . سا مين د فرخ آباد د نواب ته نږدی سړی دی او د ۱۷۵۶-۵۷ کا لو نو تا ريخي پيښي يې ليکلي دي . دغه تا ريخي پيښې د احمدشاه دراني هندوستان ته د يوی پوځ کشۍ سره اړه لري . (۱۱)

دا فغا نستا ن په باب يو لړ ګټور تا ريخي مواد د سيد عبدا لکريم بخا ری په تا ريخ کې هم پيدا کولای شو . پدې تا ريخي اثر کې تر ۱۱۵۳-۱۲۳۳ هجری کا لونو پوری (۱۷۴۰-۱۸۸۰) تا ريخي وا قعې ليکل شوي دي . (۱۲) دا خو څرګنده ده چې عبدا لکريم بخا ری

---

11— (Samin) ,'Ahmad Shah Abdali and the Indian Wazir Imad—ul— Mulk (1756—1757) contributed by ,william Irvine" (Indian antiquary" Vol. 36, 1907).

پر خوا شينې سره با يد وو ا يو ، چې د سا مين تا ريخ لکه د کا شي راج پا نډيت را پور په شان ز موږ سره يوا زی په ا نګريزی تر جمه شوې نسخه را سره ده .

12— Mir Abdul Kerim Boukhary, Histoire de L'Asie centrale (Afghanistan, Boukhara, Khiva, Khokand) depuis les dernieres annees du regne de Nader shah (1153) jusqu'en 1233 de l'Hegire (1740—818), Paris, 1876,

(نور نو ـ عبدا لکريم بخا ری ، ا فغا ن و کا بل) . ـ عبدا لکريم بخا ری خپل تا ريخ ته عنوا ن نه دی ور کړی . په لومړ يو تر کيچا پونو ـ

څوځلې د بخارا امیر سیاسي مأموریتونه ترسره کړي او ډېر مسافرتونه یې کړي دي . سید عبدالکریم بخاري مسکو او پترزبورګ ته سفر کړی و د ترکي او پښتنو امپراتورۍ سیمو ته راغلی و . دوه واره کشمیر ته تللی و . سیدعبدالکریم بخاري په ۱۸۳۰ کال کې په ستانبول کې مړ شو. دا هم امکان لري چې د خپل کتاب یوې برخې لپاره چې په افغانستان پورې اړه لري سید عبدالکریم بخاري تاریخي مواد د شاه محمود دراني څخه لاس ته کړي وي کوم چې د ماتې نه وروسته بخارا ته تښتیدلی و، او هلته سید عبدالکریم بخاري ته دا وظیفه سپارل شوې وه چې د غه بې وطنه پښتون پادشاه سره تماس ټینګ کړي .

د دغو ټولو تاریخي آثارو لیکوونکو په خپلو آثارو کې د افغانستان په باب لیکلې معلومات تر زیاتې اندازې پورې سیاسي پیښو ته وقف کړي دي . دوی د پښتنو امپراطورۍ اجتماعي او اقتصادي اړخ ته ډېره لږه پاملرنه کړې ده . د دې دورې د ډېرو مؤرخینو خپلې نظریې او پاملرنې د فیوډالي ټولنې مخکښې قشر یعنې بادشاهانو، امیرانو، وزیرانو، په ولایتونو کې د دربار نمایندګانو ژوندانه او فعالیت ته ور ګرځول شوې دي .

د ختیځو تاریخي آثارو څخه چې زمونږ په لاس کې دي ، یو هم

پواز ینی تاریخي اثردی. د غه کتاب و. مینورسکی خپور کړ (۱۳) چې دایران مطالعی خصوصاً دصفویانو دورې نه پهوروسته و ختو نو زیات مواد لري. ددې لپاره چې دغه خالی گاه ډکه شي، نومجبوریو چې دا روپا یی بیشمیره سیاسی نمایندگا نـو یاد داشـتونـو تـه مراجعه وکړو، کوم چې افغانستان ته په ۱۸ پېړی اویا د ۱۹ قرن په اوایلو کی راغلی دي .

داړول اسناد چې زمونږ په لاس کی موجود دي تر ټولو اول د کپتان بگدان اسلانوف یادداشت دی (۱۴) بگدان اسلانوف په ۱۷۶۴ میلادي کال کې افغانستان ته سفر کړی دی. دی دروسیې حکومت په سپارښت افغانستان ته راغلی و، ترڅو دافغانستان او روسیې تر منځ دپلوماسی روابط ودروی.ب، اسلانوف باید احمدشاه دراني ته دروسیې دوستي وړاندی اوخواهش یې تری کړی وای چې پترزبورگ ته خپل سفیر واستوی، ترڅو هلته موافقه لاس لیک کړي. پهخواشیني سره باید ووایو، چې روسي نماینده ته دغه ورسپارل شوی ماموریت تر سره نه شو. ځکه چې احمدشاه دراني دغه وخت په هندوستان کې و، او

---

13 "Tadhkirat al—muluk
A Manual of safavid administiation
Persian Text in facsimile (B. M.
Or. 9496). Translated and explained by V. Min
orskr, London. 1943.

(۱۴) دروسیې خارجی سیاست آرشیف، ف. « اوغانی کارونه »

ب. اسلانوفونه کولای شول چې هغه سره لیدنې کتنې وکړي. د ب. اسلانوف په یادداشت کې سوړته خصوصاً هغه معلومات په زړه پوری دی کوم چې داحمدشاه د راني او خراساني توابعو سره د رلودل. د دی نه پرته ب. اسلانوف دافغاني دولت رئیس دځینو دیپلوماتیکی اقداماتو په باب خبری کوی. (۱۵)

دب. اسلانوف نه لس کاله وروسته د درانیانو دولت ته ف. س. یفریموف سفر کړی دی. یفریموف اصلاً د ویاتکی دی او په روسی اردوکې یې دوارضا بط رتبه درلوده. یفریموف اصلاً دارپین بورگ سره نږدې قازاقانو نیولی او په بخارا کې یې خرڅ کړ. هلته دیوی سودې تیر ولو نه وروسته خوقند ته وتښتیده. د هغه ځایه د کاشغر او یارقند له لارې د پښتنو اسرا تورې ختیځو ولایتونو ته راغی. له څه سودې پس یفریموف دانگریزانو د ختیځ هند کمپنۍ سیمو ته راغی او دانگلستان له لارې روسیې ته راستون شو.

د ف. س. یفریموف یادداشتونه او د هغه دسفرونو په باب لیکنې دده په ژوند کې دری ځلې چاپ شوی چې دا ۱۷۸۶، ۱۷۹۴ او ۱۸۱۱ کالونه

---

۱۵ـ افغانستان ته د ب. اسلانوف سفر په باب زیات معلومات د یو. و. گانکوفسکی اثر کوری: «په ۱۷۶۳ کال کې افغانستان ته د یکدان

وو(۱۶). زموږ لپاره دده په لیکنو اویا دداشتونو کې هغه معلومات د توجه وړ دي، کوم چې ددرانیانو امپراتورۍ یوې وړې برخې یعنې د کشمیر په باب هلته راغلي دي.

په ۱۷۸۳ میلادي کال کې د پښتنو امپراتورۍ ته د برتانیې شرقي هند کمپنۍ یو منصبدار جورج فاستر سفر کړی دی(۱۷) فاستر د گرجستانې سوداگر په څیره ځان پټ کړی و.

ده خپل سفر د کلکتې څخه پیل کړ، کشمیر ته راغی، هلته یې درې میاشتې تیرې کړې، بیا پیښور، کابل، کندهار او هرات ته راغی. د فاستر کتاب چې د لارې نه د تیریدو په حال کې دخطونو په بڼه لیکل شوی دی د افغانستان ښارونو، تجارت، کسبونو، مالیاتو، گمرکي محصولاتو دولایتونو حاکمانو او مرکزي حکومت ته رڼا اچوي. او بالاخره

---

۱۶ ـ موږ دف، س یفریموف یادداشتونو او هم چاپ څخه استفاده وکړه چې د دریاري مشاور یفریموف مسافرتونه بخارا، خیوا، پارس، هند او له هغه ځایه د انگلستان له لارې روسیې ته راگرځیدلو «ویري» سان پترسبورگ، ۱۷۹۴ ـ لومړی چاپ (۱۷۸٦) په ۱۹۵۰ کال له سره چوړ شوی خپور شو (فیلیپ یفریموف، نه کلن مسافرت، مسکو، ۱۹۵۰). د فلیپ یفریموف اثر قلمي نسخه په ۱۷۸۴ کال کې په «روسکیه ستاریینه» کې چاپ شوه. (۷۹ ټوک، ۷ چاپ، ۱۸۹۳، ۱۲۵ ـ ۱۴۹ مخونه).

17—G. forster, A Journey from Bengal to England, through the northern partof India, Kashmire, Afghanistan, and persia, and into Russia, by the caspian—sea, Vol. 1—11, London,1798

د تیمورشاه د راني اردو په باب معلومات لري .

دوه کولای شو چې د افغانستان په باب پوره معلومات د میتر وپا لیت نووا پتراسکی گریسا نوف (۱۸) له یاد داشتو نوخخه لاس ته راوړو همدا ډول رفائیل داني بیگف (۱۹) افغانستان ته (۱۸) پیړی په

---

۱۸ـ گریسا نوف نووا پتراسکی میتر و پا لیت، د منځنی آسیا هیوادونه چې "په اوولس سوه نوي ومو کالونو کې هغه لیدلي دي« د امپراتورد تاریخ اود روسانو دلرغونتوب په ټولنه کی لوستنه» اول ټوک، ۱۸۶۱) د ۶م . کو بیکو، په ۱۸۹۲ کې د میتروپا لیت گریسا نوف سفر دلایلو ما نه سا ن پتر بورگ، ټ، ۱۸۸۹، ۳۸۵-۳۹۸ مخونه) .

۱۹ـ رفائیل داني بیگف، هندوستان ته د گرجي سر دار رفائیل داني بیگف سفر، مسکو، ۱۸۱۵ کال.

20— M. Elphinstone, An account of the King dom of Kabul, and its dependencies in Parisa, Tartary and India the Afghan nation and a history of the Dooraunee Comprising a Vieue of Monarchy, London, 1815

د راور وسته وخت چاپونه هم شته (لندن، ۱۸۱۹ اور ۱۸۴۲) همداډول په آلماني Weimar 1817 او فرانسوی (۱۸۱۷ Paris او ۱۸۴۲ ترجمې . په ۱۸۳۹ - ۱۸۴۰ کالونوکې د هيات د غړي (م . الفنستون ـ ایروین) یاد داشتونه :

Irwin, Memair on the Climate, Soil, produce , and

نوی و و کالو نو کې سفر کړی دی. میتروپالیت نووایتراسکي گریسانف په اصل کې دوینیس دی. دی هغه وخت افغانستان ته د ۱۸ پیړی په نوی وسو کالونو کې راغلی وو، چې لا تراوسه یې عیسوی دین نه و قبول کړی.

د ۱۹ پیړی په شروع کې د درانیانو امپراتوری د زوال نه د مخه مشهور برتانوی سیاست پوه او مورخ ماونټستیوآرت الفنستون افغانستان ته راغلی دی (۲۰) د ده «کتاب د کابل د شاهی په باب راپور» نومیږی. الفنستون په ۱۸۰۹ میلادی کال کې د برتانیې شرقی هند کمپنی سیاسی هیأت په مشری افغانستان ته سفر وکړ. د الفنستون په راپور کې د افغانستان دولتی موسسو، د امپراتوری اداری څانگې، فوځی سیستمونو، د پښتنو قبایلو اجتماعی اقتصادی نظامونو په باب پریمان معلومات راغونډ شوی دي.

د الفنستون کتاب هغه فصلونه چې د پښتنو امپراتوری د ځو سیمو یعنی بلوچستان او سند ته وقف شوی دی، ګڼ. پاتینجر (۲۱) یادداشتونو معلوماتو اضافه کولو سره درسته کوی. پاتینجر برتانوی منصبدار و، چې په (۱۸۱۰) کال کې د منځنی اسیا او سیند ونکی په جامه کې د دغه سیمې لیدلی دي. همدا ډول په دغه کال کې کپتان

کریستی (۲۲) هرات ته تللی دی .

د همدی دوری په باب د انگریزانو رسمي جریدې ډېر زیات معلومات لري، چې دلا ربنوونکي بڼه لري . د غه چاپي لا ربنوونکی هغو منصبدارانو لیکلي دي چې د بر تانوی هند رسمي مقاما تو په اشاره سره په مستعمراتي سیمو با ندی جوړشوی دی . د دی لاربنوونکی لیکونکي دخپلو مشاهداتو، پوښتنو، اوجاسوسانو معلوماتو نه علاوه د افغانستان تاریخي آثارو، دولتي اوخانگړو ارشیفونو، د بر تانوی، هندي او افغاني اسنادو څخه استفاده کوله، کوم چې تراوسه پوری نه دی چاپ شوی او محققینو ته د هغوی څخه د استفادی لار نشته .

پدې باب تر ټولو زیات « د ۱۸۴۱ کال د اپریل په ۱۹ تاریخ باندې د درانیانو قبیلو په هکله راپور » دعلاقې وړدی . د غه اثر بر تانوی منصبدار سوور خ کټ . را اولین سن (۲۳) لیکلی دی . همدا

---

22— (Abstract of cap tian christie's journal" —
د پاتینجر کتاب په ضمیمه کې لیکل شوی دی
Henry Pottinger, Travel in Beloochistan and Sinde...., Appendix, P. 403—423).
زموږ د موضوع په باب یو لړ معلومات د بر تانوی سیاحانو په یاد داشتونو کې پیدا کولای شو، چې د ۱۹ پیړی په ۳۰-۲۰ کالونو کې لیکل شوی .

23— Henry C. Rawlin son, Report on the Door anee Tribes deated 19th April 1841 (Central Asia. A Contribution Towards the better know ledge of the Topography,

د ټول «حيات افغاني» د دغه وروستي اثر د استعماري اداري ماډو ر د محمد حيات خان ليکلی دی چې په ځانګړې توګه پښتونو(۲۴) د دغه اثر د پښتنو قبيلو تاريخي اجتماعي، اقتصادي روابطو او رواجي حقوقو ته وقف شوی دی.

ډير زيات معلومات (خصوصاً د ۱۸ پيړۍ په دوهمه نيمايي کې د افغانان انګليس او هند و افغان روابطو بانډې) د برتانوي شرقي هند کمپنۍ ارشيفونو، اسنادو او دوسيو کې شته دی، چې د ۱۹۱۱ ميلادي کال نه تر ۱۹۵۳ کال پورې د هغوی خپرونو دوام درلود. د دې جملې څخه يو لړ اسناد د برتانوي جاسوسانو راپورونه دي چې په افغانستان کې اوسېدل. د دوی په راپورونو کې د پښتنو دار، وشمير، د دراني پاډشاهانو په دربار کې شورشونه، دسيسې او داسې نور قيمتي مواد موجود دي، چې د دغه ټول اسناد او راپورونه په لسو ټوکونو کې خپاره شوي دي. د دغه اسناد او راپورونه له ۱۷۵۹ کاله تر ۱۷۹۱ کاله پورې دوره مطالعه کوي (۲۵). په دغه مطالعې لاندې دوره کې د افغانستان پوځي سيستم او د دولتي اداره جوړښت په باب يو لړ تفصيلات کولای شو، چې د اروپايي مؤلفانو خصوصاً ختيځ اروپاليکوالو په آثارو کې پيدا کړو. د دوی د پښتنو امپراتوري سيمې د دراني پادشاهانو د زوال په وروستيو وختونو کې ليدلی

---

۲۴ - محمد حيات خان، حيات افغاني، لاهور - ۱۲۸۳.

25. "Calender of persian correspondence. Being

د ټول «حیات افغانی» دغه وروستی اثر د استعماري اداري مامور محمد حیات خان لیکلی دی چې په خټه پښتون و(۲۴) دغه اثر د پښتنو قبیلو تاریخي اجتماعي، اقتصادي روابطو او رواجي حقوقو ته وقف شوی دی.

ډېر زیات معلومات (خصوصاً د ۱۸ پېړۍ په دوهمه نیمایی کې د افغان ـ انګلیس او هند و افغان روابطو باندې) د برتانوي شرقي هند کمپنۍ ارشیفونو، اسنادو او دوسیو کې شته دی، چې د ۱۹۱۱ میلادي کال نه تر ۱۹۵۳ کال پورې د هغوی خپرونو دوام درلود. ددې جملې څخه یو لړ اسناد د برتانوي جاسوسانو راپورونه دي چې په افغانستان کې اوسېدل. د دوی په راپورونو کې د پښتنو د اردو شمېر، د دراني بادشاهانو په مقابل کې شورشونه، د سیمې او داسې نورو قیمتي مواد موجود دي، چې دغه ټول اسناد او راپورونه په لسو ټوکونو کې خپاره شوي دي. دغه اسناد او راپورونه له ۱۷۵۹ کاله تر ۱۷۹۱ کاله پورې دوره مطالعه کوي(۲۵). په دغه مطالعې لاندې دوره کې د افغانستان پوځي سیستم او د دولتي ادارو جوړښت په باب یو لړ تفصیلات کولای شو، چې د اروپایي مؤلفانو خصوصاً ختیځ پوهانو لیکوالو په آثارو کې پیدا کړو. دوی د پښتنو امپراتوري سیمې د دراني پادشاهانو د زوال په وروستیو وختونو کې لیدلې

---

۲۴ـ محمد حیات خان، حیات افغانی، لاهور ـ ۱۲۸۳.

25. "Calendar of persian correspondence. Being

دی. دوی دخپلو آثارو دلیکلو په وخت کې دا موقع لرله، چې د درانی پادشاهانو د دوري پولړ هغو لیکل شوی آثارو او نورو منابعو څخه استفاده وکړي، د کومو څخه چې نورو استفاده نه کړای شوه. دوی د همدې دورې د پېښو اېډونکو اوکمو ونکوو نکو معلوماتو څخه استفاده کولای شوه. پدې جمله کې دوروستنه دورې مؤلف او پښتون لیکونکی سلطان محمدخان درانی د شال په توګه یادولای شو. ده خپل اثر د «تاریخ سلطانی» (۲۶) ترعنوان لاندې لیکلی دی او تر ۱۲۷۹ هجری کال (۱۸۶۳) کال پوري يې رارسولی دی.
فیض محمد دزیاتې زیار ایستنې په برکت د افغانستان دري توکیز تاریخ «دسراج التواریخ» (۲۷) په نوم سره و لیکه.
همدا ډول د تېرې پېړی په دوهمه نیمایی کې يو بل ایرانی تاریخ لیکونکی شهرت لری خو دهغه دکتاب نوم «مطلع الشمس» (۲۸) دی. ددې تاریخي کتاب لیکونکی محمد حسن خان دخپل اثردوهم

---

۲۶ - سلطان محمد خان درانی - تاریخ سلطانی - بمبئی - ۱۲۹۸.
۲۷ - فیض محمد - سراج التواریخ - کابل - ۱۳۳۱ -
دسراج التواریخ زیات معلومات لپاره د ۱۰۱ سیمیو نوف د څه اثر و ګوری:
مطلع الشمس. د افغانستان تاریخ دی چې د امیر حبیب الله خان په امر او دهغه په ژبړدی ګډون سره لیکل شوی دی.

توك د مشهور ښار او هغه تاريخ ته چې له ۲۲۸ کال نه تر ۳۰۲ ه
پورې (۱۰۳۶-۱۸۸۵) وقف کړې دی. دی په خپل اثر کې خراسان
ته د احمدشاه دراني د فوځ کشيو په باب په تفصيل سره خبرې کوي.
او د احمدشاه دوو فرمانونو مکمل متن په خپل کتاب کې رانقلوي.

د اروپائي محققينو له جملې نه موږ د فرانسوي سياح او مورخ
فريې (۲۹) او مشهور برتانوي افغان پيژندونکي راورتي (۳۰) له آثارو
څخه استفاده وکړه.

پدې آثارو کې ليکوالو افغانستان ته دراتګ په وخت کې زيات
علمي مواد راغونډ کړي دي. ولې د تاريخ ليکونکو دغه پورتني
آثار چې د ۱۹ پيړۍ ددوهمې نيمايي او شلم قرن پيل سره ربط لري
د منابعو سره پيوستون نه شو ورکولای، څکه چې دغه آثار زموږ
د موضوع په نسبت د منابعو او درسي کتابونو په منځ کې موقعيت
غوره کوي.

د درسي کتابونو څخه په اول وار کې کولای شو چې د افغاني
مؤرخينو آثار لکه د مير غلام محمد غبار «احمدشاه بابای افغان»
(۳۱) او عزيز الدين پوپلزايي اثر «تيمورشاه دراني» (۳۲) نومونه

---

29 — J. P. Ferrier history of the Afghans, London, 1858.

30— H. G. Raverty,Notes on Afghanistan and part of Baluchistan: geographical, ethnographical and historical Extr acted from the writings of little known Afghan and Tajik historians, geographers and genealog ists, London, 1880.

یاد کړو. د دوی په آثارو کې په افغانستان کې د دراني لوړو یو پادشاهانو په حالاتو باندې رڼا یې اچولې شوې ده. همدا ډول د سید قاسم رښتیا کتاب «افغانستان په ۱۹ پېړۍ کې» (۳۳) زیاتره برخه په ۱۸ او ۱۹ پېړیو کې د افغانستان داخلي جګړو ته وقف کړې ده.

د نورو هېوادونو کتابونو له جملې څخه باید د هندي تاریخ لیکونکي ج. سرکار (۳۴) او ح. ګوپتا (۳۵) څېړنو نوم یاد کړو. د دوی آثار په ۱۸ پېړۍ کې د هندوستان تاریخ مطالعه کوي. د دوی آثار په زیاتو وختونو آثارو د آرشیفونو په موادو، رسمي اسنادو باندې تکیه کوي چې د دغه موادو د منابعو په واقعي ډول د دغه وخت هندو ـ افغان روابطو په باب په زړه پورې معلومات د ۱۸ پېړۍ په دوهمه نیمائي او د ۱۹ قرن په پیل کې د پښتنو تاریخ ډېرو تاریخي نېټو په سوالونو کې چې تر اوسه پورې د مناقشې لاندې دي، زموږ سره د سکو پېژندنې آثارو مرسته وکړه، کوم چې د برتانوي تاریخ لیکونکو چ. روجرس (۳۶) او ل. دیمس (۳۷) لیکلي دي. د دوی نه پرته په دې برخه کې د و. مان (۳۸) تحقیقاتو ته استفاده هم د یادونې وړ ده.

---

۳۳ ـ سید قاسم رښتیا ـ افغانستان در قرن نزدهم ـ ۱۳۲۷

34— Jadunath sarkar, fall of the Mughal empire, second edition, revised and corrected, Vol. I—IV, calcutta, 1949— 1950.

35— H. R. Gupta, History of the sikhs, Vol. I—III, Yahore 1944; H.R. Gupta, Studies in the later, Mughal history of the panjab (1707—1793), lahore, 1944.

36 Ch. J. Rodgers, the coins of Ahmad Shah Abdali or Ahmad Shah Durrani ("Journal of the Asiatic society of Bengal" Vol. LIV, pt. 1. (Calcutta), 1885.

38— oskar Mann—Quellenstudien Zur Geschichte des Ahmad Durrani (1747— 1773) ("Zeitschrift der Deutischen margenlandischen Gesellschaft" Bd 52, leipzig 1898).

# فهرست

# لومړی فصل

## د دراني امپراتورۍ مساحت او سرحدونه

لا تراوسه د دراني امپراتورۍ سرحدونه، چې مؤسس ئې احمدشاه و، په پوره وضاحت سره نه دي ترسيم شوي، ولې په دې خبره کې هيڅ شك نه شته چې دغه امپراتوري په ۱۷٦۱ کال کې د مساحت له مخې د بل هر وخت نه وسيعه وه ځکه چې په همدغه وخت کې د احمدشاه دراني قدرت په اوج کې و.

په دې دوره کې د احمدشاه په امپراتورۍ کې د دغو ځمکو نه علاوه چې پښتانه ورباندې اوسيدل، د هندوستان، ايران او جنوبي ترکستان زياتې برخې پکې شاملې وې.

دغې عظيمې امپراتورۍ څه د پاسه دوه مليونه کيلو متره مربع مساحت دراوده

د کندهار په ولایت کې ځان محکم کړ ، او دغه ځای وروسته د امپراتورۍ مرکز وګرځید . د همدې کال په دوهمه نیمائی کې احمدشاه درانې غزنی ، کابل، پېښور هم د ځان تابع کړل . په ۱۷۴۸ کال کې دیره جات (دسند دریاب په ښی غاړه ) هم په درانې امپراتورۍ کې ورشامل کړای شول . دغه ټولې سیمې د هرات په شمول تر ۱۷۵۰ کاله پورې احمدشاه درانې په خپله امپراتورۍ کې متحدې کړې . دغو سیمو د درانې امپراتورۍ اساسی هسته تشکیلوله . د اساسی هستې تشکیل نه وروسته احمدشاه د هندوستان، ایران او ترکستان په نږدې سیمو باندې خپل قدرت او نفوذ خپور کړ.

احمدشاه شمال غربې خواته خراسان فتح کړ . پدې ځای کې د نادرشاه د قتل نه وروسته یو شو کوچنی فیوډالی حکمرانی منځ ته راغلې وې . په مشهد کې چې د خراسان مهم ښار و ، د داخلی اوږدو جګړو نه وروسته د نادرشاه لمسی شاه رخ حکومت کاوه . د تیبس او تون ښارونه د بانو شیبا د قوی قبیلې مشر علی مرادخان په لاس کې وو. نیشاپور د عباس قلی خان بیات له خوا فتح شوی و . په کاپون ، سبزوار توربت حیدري ، تورشیز کې هم مستقلې فیوډالی سرداری تشکیل شوې وې. د خراسان شمالی برخه د کردیانو مشرانو په منځ کې تقسیم شوې وه . پدې برخه کې دوی نسبتاً لویې سردارۍ د چناران او کابوشان په نوم موجودې وې .

په ۱۷۵۰ کال کې احمدشاه یو کوشش وکړ ، چې مشهد ونیسی ، ولې دغه لومړی کوشش کامیاب نه شو ، آما په دوهم وار په ۱۷۵۰ کال کې احمدشاه وکولای

اوسکه هم دده په ئوم سره ضرب شوه(۱). دمشهد حکمران شاه رخ د « دوستی له نظره» په خپل ځای پاتې شو.

دغه دوستی داحمد شاه او شاهرخ ترمنځ موجوده وه (۲) ، الدې وروسته احمد شاه تیبس، کلات ، شیروان، کوچان اودخراسان نور ښارونه فتح کړل(۳). ځینې حکمرانان (دمثال په ډول دسبز وارښار حکمران) په خپله رضا د پښتون پادشاه تا بعیت ومانه. په زیاتره مفتوحه ښارونو ، لکه په مشهد کې دغه ځای خانان په حکمرانیو باندې پاتې شول . حتی د نیشا پور غوندې ښار چې احمدشاه په زیاتو قربانیو سره لاس ته راوستلی و ، بیا هم هلته ئې عباس قلی خان دحکمران په حیث پریښود (۴).

---

(۱) کرونو لوژی دسمان له خوا ترتیب شوې ده .

Oskar Mann, queilen studien Zur Geschichte des Ahmad sah Durrani 1747—1773 ("Zeitsehrift der Deutschen Morgenlandisch en Gesellschoft", Bd. 52, Leipzig 1898), 5. 163—325, 326;

همدا ډول دمحمد حسن خان مطلع الشمس دوهم ټوک، ص۳۴۷، ۳۵۰ ، دروسیې دخارجي سیاست ارشیف . « دپارس سره دروسیې روابط » ۱۷۵۵، د. ۵، ل ۷۸، د ۷۰ ، ل ۱۶ ( وروسی دروسیې دخارجي سیاست ارشیف )و گوری .

(۲) روم ته داصفهانی اپیسکپ کرنیلی له راپور نو څخه) دغه کتاب ته مراجعه وکړی:

"Chronicle of the Carmelites in persia and the Papal Mission of 17 and 18 centuries" Vol. I, London 1939— P. 670—671.

(۳) عبدالکریم بخاری، افغان و کابل ،ص ۹ ، دروسیې دخارجي سیاست ارشیف «د پښتنو په باره کی اسناد» ۱۷۶۳–۱۷۶۶ کالونه ، د ، ۱ ، ل ۲۹ ، ۳۹ –۴۰ .

دخراسان جنوبي سيمويوه برخه دافغانستان د هرات په ولايت کې شامله کړې شوه .
داحمد شاه دزوی تیمور شاه په وخت کې (۱۷۷۳ — ۱۷۹۳) د افغانی پاچاه او خراسان دتابعو حکمرانانو ترمنځ سرحدي کرښه دتورشيزپه جنوبي خوا کې مستقیماً ددو شاهانو له خنګک سره تیریده (٥) . احمدشاه دراني دخراسان خانان مجبور کړل چې شاهرخ دخراسان دحاکم په صفت ومني ، ولې شاهرخ ونه کولای شول چې حتی دمشهد نږدي سيمي ترخپل تسلط لاندې راولي (٦) .

شاهرخ په خپل ځان باندې داحمدشاه دراني اعتما د ساته ،ولې دخراسان نور خوانين اوپه هغه جمله کې دشاهرخ زامنو څو کرته داحمدشاه په مقابل کې شورشونه پورته کړل ( ٧ ) . د غه شورشونه حتی داحمدشاه د مرګک نه ور وسته پسې روا ن و ،له همدې کبله تیمورشاه مجبور شو چې خراسان ته څو ځلی خپل پوځونه ولیږي (٨) . پاهم حتی په ۱۷۹۳ او ۱۷۹٤ کالونو کې په خراسان کې خطبه او سکه

---

5— G. Forster, A Jour ney from Bengal to England, Through the northern part of India, Kashmire, Afghanistan, and Persia, and us to Russia, by the caspian sea, Vol. 11, London, 1798P. 165; James Rennell, Memoir of a map of Hindoostan or the Mogul empire :with introduction second editian, London, 1792, P. 52;

فیض محمد سراج التواریخ ،لومړی ټوك ، ص ١٦ .

6— Malcom, the History of persia from the most early period to the present time, Vol. 11 London1815, P. 113—114.

٧— حسین علی ،زينت تاریخها ، ٦ پاڼه .

8— G. Forster, A Journey from Bengal to England ., Vol, II, P, 87,148, 150—151; J—Malcom, the history of persia . .

دافغاني پادشاه په نوم وې. په خراسان کې د راني حکومت ته اغامحمدشاه قاجار خاتمه ورکړه او په ۱۷۹۶ کال کې یې مشهد فتح کړ (۹) .

په ۱۷۵۳ کال کې احمدشاه دخراسان څخه علاوه غرب خواته دسیستان زیاته برخه چې د کیاني خاندان دخانانو په لاس کې وه، هم خان ته تابع کړه . داتلسمې پېړۍ په ټوله دوهمه نیمایی اود ۱۹ پېړۍ په اوایلو کې سیستان دافغاني شاهانو په لاس کې و (۱۰) . دسیستان حکمرانانو افغاني پادشاه ته مالیات ورکول، او

---

۹ــ عبدالکریم بخاري، افغان و کابل ،ص ۳۲ــداغامحمدشاه دوژلو نه وروسته دشاهرخ زوی نادرمیرزا په ۱۷۹۹ کال کې غوښتل چې مشهد ته راستون شي، اما قاجارانو هغه ته شکست ورکړ . دی ئې دخپلو ورونو زامنو سره بندیان او مړه ئې کړل. په ۱۸۰۲ کال ئې بیامشهدونیو، دغه لاندې کتاب دد ې موضوع لپاره وګورئ:
The dynasty of the Kajars, translated from the original persian manuscript, "presented by H. M. faty Alyshah to sir Har ford Jones Bridge" London, 1833, (P. 76, 157—158, 166—168).

10— James Rennell, Memoir of the map of Hindoostan P. 152;
ګریساتف میتروپالتنوا پتراسکی ، هغه هیوادونه چې د ه په ۱۷۹۰ کالونو کې په منځنۍ اسیا کې لیدلی دي . « دامپراتورپه توانه کې دتاریخ او لرغونوروسانو سطا لعې » لومړی کتاب ، ۱۸۶۱ ،ص ۵ ،

M. Elphinston, An account of the Kingdom ofKabul and its dependences in Persia, Tartary, and India, com prisinga view of the Afghans nation and a history of the Dooraunee monarchy. London, 1815, P. 493—494.

هم یې د پادشاه پوځونو ته د عسکروټولګي ورلیږل. د کیانیانو پایتخت د جلال آباد (یادوشك) ښار و. د احمد شاه په وخت کې دلته سلیمان کیاني حکومت کاوه، د زمان شاه د سقوط نه وروسته (۱۸۰۱) کیاني خانانو د افغانستان په فیودالي شورشونو او کډه وډیو کې فعاله برخه واخیسته. کیانانو په اول کې د احمد شاه د پوه لمسي شاه محمود حمایه کوله، او بیائي د ده د زوی کامران مدافعه شروع کړه (۱۱).

د سیستان پاتې برخه د خاښ د سیمې په شمول، د بام ښار د حکمران تر اداري لاندې وه. (د دې سیمې حکمران د غلجیانو له قبیلې څخه و)، د احمد شاه د مرګ نه وروسته د ۱۷۷۵ کال په حدود کې د غه سیمه د کریم خان زند د عسکرو له خوا ونیول شوه، ولې ډیر ژر بیا د افغانانو لاس ته ورغله (۱۲). اما د ۱۸۰۲ کال په حدودو کې د ایران پادشاه فتح علي شاه قاجار د بام ښار د کرمان په ولایت کې ورشامل کړ.

په ۱۷۵۰ کال کې د بلوچستان په جنوبي برخه کې د هغه ځای حکمران (بیګلربیګ) د احمد شاه تابع شو. د کلات خان ناصر خان د حکومت اقتدار په هغو سیمو باندې چې د بحیری عرب پورې غزیدلي وې چلیده. د کراچۍ ښار هم

---

11— R. Leech, Adescription of the country ("Journal of the Asiatic Society of Bengal", Vol, XIII, Pt. I, 1844), P. 117; St. John, Lovett, smith andGolds mith, Eastern pers-ia, and account of the journeysof the persian boundarycommission 72, Vol,I 1870—71 --London, 1870, P.402.

12— E.S. waring. tour to sheeraz, by the route of Kazroon and feerozabad, with various remarics on the manners, customs, Laws, hangueg, and Literature Lond on, 1807,

دناصر خان تر واك لاندې و. دلا سربېله او كچي خانانوهم د ناصرخان ته ماليات وركړل. غرب خواته شال (كوټه) او ختيځ لوري ته دده د حكومت پوله د سند سره هم سرحده وه (۱۲).

په ۱۷۵۸ كال كې ناصرخان داحمد شاه په مقابل كې شورش پورته كړ، ولې احمد شاه په خپله د غه شورش كيناوه. دشورش كيدو لونه و روسته د احمد شاه او ناصرخان ترمنځ دامې قرارداد هم وتړل شو، چې د هغه له مخې د بلوچستان د متابعت شرايط ئې ټاكل (۱۳) په ۱۷۹۵ كال كې دناصرخان د مرګ نه وروسته په بلوچستان كې فيوډالى انار ئې شروع شوه . د ناصرخان زوى محمود د پلار ئې حكومت لويه سيمه دلاسه وركړه ، محمود اګرچې د بلوچستان د بېګلر بيګى لقب ساته، و لې عملاً د كلات ښاراو د هغه شاوخوا سيمې ورپاتې وې . د كرا چې ښار د سند اميرانو

---

13— Henry Pottinger, Travels in Beloochistan, and sinde; a ecompaniedby a geographical and historical accoeint of those countries, London,1816, P. 294, 299, 304; irwin Memair on Glimate, soil, produce and husbandry of Afghanistan and neighbouring countries "Journal of the Asiolic society of Bengal" Vol. VIIIX (Calcutta), 1839, 1840) , P. 764; M. Elphistone, and account ..' P.449, R. Leech, Brief History, of Kalat, Brought down to the deposition and death of Mehrab Khan, Brahoee ( Journal of theAsiatic Society of Bengal", vol. XII, 1843), P. 475.

لاس ته ورغله. د نورو ښارونو او منطقو حکمرانانو هم د باج ورکولو نه غاړه وغړوه او په نتیجه کې د محمود عایدات د خپل پلار په نسبت لس ځلې را کم شول. د همدې وجهې نه محمود د پښتنو شاهانو ځان تابع باله. د پښتنو دولت اگر چې پدې وخت کې په ځرگنده دول سخ په کمزور تیا روان و، ولې باوجود د دې محمود به خپله خو کرتې د پښتنو دربارته حاضر شو، پښتنو ته ئې خپل احترا م ورا ندې کاوه او ختې خپل عسکرئې دوی ته رالیږل. د مثال په ډول په ۱۸۰۵ کال کې د محمود پوځ د شاه شجاع پوځونو سره په سند با ندې په حمله کې برخه وا خیسته (۱۵). د ۱۹ پیړۍ په اوایلو کې د پښتنو شاهانو سرحد د بلوچستا ن سره د کو یټې (کویټه د ا وخت د کلات د خان په لاس کې وه) شما لي برخو سره مستقیماً تیریده. جنو ب خواته د دواړو حکومتو نو سرحد د شیراوک (ښوراوک) څخه تیریده چې د غه ځای د افغانستا ن په حدود کې واقع و (۱۶).

دا یاسین په ښکته برخو کې احمد شاه د سند اواره او ځنې منطقه فتحه کړه. په ۱۷۴۸ کال کې د رانې عسکرو د سند په شما ل کې د شکا پور ښارونیو ،او هغته افغانی جانشین وتا کل شوا و په ۱۷۵۰ کال کې کوز سند (وروسته له هغه چې د پنجاب شمال غربي برخه د پښتنو په دولت پورې وتړل شوه) هم پښتنو فتح کړ. د دې ځای حکمرا ن د احمدشاه تابع وتا کل شو. د ۱۷۵۷ کال په اوایلو کې د دیلي پا د شاه لوی مغل دوهم عالمگیر د سند له ټولو امتیازاتو څخه لاس په سرشو. د غه منطقه

---

(۱۵) - د اسې فکر کیږي چې سید قاسم ریښتیا د لته جو ته غلطی کوي څکه هغه لیکي چې په ۱۸۰۵ (۱۲۲۰ هجري کال کې) ناصر خا ن خپل ز وی د پښتنو

یووخت ددوهم عالمګیر نیکو نو په لاس کې وه ، ولې دوهم عالمګیر احمدشاه ته دمغلی شاهزادګی په تیکري کې ور کړه .

کله چې سرهټیانو دلاهور څخه تیمور شاه وشاړه ، دسند امیر افغانانو ته دباج ور کولو نه انکارو کړ.

په ۱۷۷۸ کال کې دسند دامیرانو یعني دغلام نبی خان ، کل هر او تالپور میرانو ترمنځ داخلی جنګونه شروع شول ، او په نتیجه کې دتالپور میران غالب شول ، دپښتنو بادشاه اګرچې پدې جګړو کې دکل هرحمایه کوله ، ولې ددې مرستې باوجود کامیابی دمقابل لوري په نصیب شوه . تالپوریانوچې د تیمورشاه دنیت مخالف ئې پهسند کې قدرت لاس ته راوستلې ، په ۱۷۷۹ — ۱۷۸۱ ۱۷۸۳ — او ۱۷۸۶ کالونو کې په سند باندې حملې وکړې او وروسته هم تالپوریانو درانې شاهانو تهچندان اعتنانه کوله . دوي که کوم باج افغانی پادشاه ته ورکاوه نو هغه فقط ددې د ر که و ، چې دنظامی تهدیدا و لښکر کشی نه ویریدل . دشکار پور په حصه کې دومره باید وویل شي چې دغه ښار تر ۱۸۲۳ کال پورې د پښتنو په لاس کې و . ترهغو دسند میرانو دغه ښار دپښتنو څخه ونیو .

دسند پهجنوب ختیځه سیمه کې دبهاولپور نواب محمد مبارك بهاول خان چې دیوې ارتې سرداری حکمرانو ، د ستلیج دریاب ختیځ کې پرته وه ، او مشهور ښارونهئې بهاول پور ، احمدپور ، جامپور ، اوستهوروو ، د احمد شاه د راتې متابعت قبول کړ . دمحمد مبارك بهاول خان د مرګ نه وروسته د بهاول پور

پوځ کشی وکړه. نواب وتښتید، یا پیښت پښتنو لښکروونیو (۱۷). بهاول خان مجبور شو چې نه یوازې تول « باقیات » تیمور شاه ته ورکړي، بلکه خپل زوی هم دیر غمل په دول پښتون پادشاه ته راولیږي، اوهم دهغوپه مقابل کې عسکري مرسته هم ورسره کړي. اما څو کاله وروسته تیمورشاه په ۱۷۸۹ کال کې بیامجبورشو، چې بهاول پور ته خپل پوځ واستوي، ترڅو ددې پوځ په مرسته و کولای شي د بهاول خان څخه حساب شوې باج واخلی (۱۸).

په ۱۷۹۳ کال کې شاه زمان دخپل سلطنت په اوائیلو کې په خپل دربار کې بهاول خان ومانه، چې دخپلې وفاداری اظهار لپاره قندهار ته حاضرشوی و. نواب بهاول خان ددرانيٓ خاندان ترسقوط پورې د پښتنو شا هانو تا بع و. بها ول خان تش په نوم دخپلې سیمې گورنر بلل کیده، ولې عملا ئی (سردارانو ته باج ورکاوه).

(۱۹) په بهاول پورباندې دافغانی دولت قدرت ته د پنجاب راجه رنجیت سنگ خاتمه ورکړه دبهاول پور نواب مجبور شوچې دپنجاب راجه تسلط ومنی، او د خپلو عایداتو پوره نیمائی برخه ئی هغه ته دباج په نوم ورکوله (۲۰).

---

۱۷ ـ سلطان محمدخان درانی، تاریخ سلطانی، ص. ۱۰۰ - مخ ۱۰۰.

18— "Calendar of pers ion correspondence. Being latter swhichpassed between some ofthe company's servants and indion rulers and notables", Vol. V II, Calcutta—Delhi, 1953; P. 637—638.

19— M. Elphinstone an account.., P. 502—503.

د۱۷۵۷ کال په اوا يلو کې سرهند داحمد شاه په قلمرو کې دتيمور شاه ښځې محمدي بېګم ته په (ټيکري) کې ورکړ شو، چې دلوی مغل عالم ګير لوروه (۲۱) عبدالصمد خان محمدزی دسرهند حاکم وټاکل شو، اما په ۱۱۷۱ هجری کال کې (۱۷۵۷-۱۷۵۸) د ‌ډدرا ګونات راو سپاه سالار په مقابل کی شکست وکړ (۲۲).

عبدالصمد خان بندی درا ګونات راو لاس ته ورغی، کله چې احمدشاه مرهټيا نو ته شکست ورکړ، سرهند بيا ددرانيانو لاس ته ورغی، ولې په ۱۱۷۸ هجری کال کې (د۱۷۶۳ عيسوی کال په دسمبر يا د ۱۷۶۴ په جنوري کې) سکانو افغانی جانشين زين خان ووژه او سرهند ئې ونيو، ولې کله چې احمدشاه هندته راستون شو، سکان ئې مات کړل، نو سرهند ئې ونيو. کله چې احمدشاه هندته راستون شو سکان ئې مات کړل، نو دسرهند حکمراني ئې په دې مقصد چې دغه ولايت دځان سره وساتی، دخپل وزيرشاه ولی خان په مشوره په ۱۷۶۵ کال کې يوه قوي راجه پټياله الاسنګ ته ورکړ، داله سنګ زه وروسته دده لمسی اميرسنګ په (۱۷۶۷) کې ددې ولايت حکمران شو، امير سنګ ته احمد شاه د(را جـه راجګان) لقب او قيمتی کالی ور کړل (۲۳). ولې بيا هم احمد شاه ونه کولای شول چې سرهند دځان سره وساتی. ځکه چې

---

(۲۱) ددې دوستي په سرسته داحمدشاه نفوذ دډيلی په دربار کې پايدلاتينګ شوی وای، ددې باره کې د(زينت تار يخـها) په دريمه پاڼه کې حسين علی پوره معلومات ورا ندې کوې محمدي بيګم په زهرا ـ بيګم او ګوهرافروزسره هم ياد يدله ددی لپاره دغه لاندې کتاب وګوری:

Jadunath sarkar, fall of the Mogullempire, Second edition,

په پنجاب کې دسکانو قدرت ورځ په ورځ زیاتیده ،، داحمد شاه دسلطنت وروستیوشپو ورځو کې دلاهور صو بې زیاته برخه سکانو ونیوه ، اوپه سرهند باندې د درانــي شاهانو قد رت تش په نوم شو.

دپنجاب شمال ختیځه سیمه ، لکه ګجرات ، پاسرور، اورنګ آباد اوسالکوټ احمدشاه ته د هغه قرار داد په اساس ورکړل شول، کوم چې ده په ۱۷۵۰ کال کې په لاهور کې د مغلی صوبه دارمیر منو (معین الملک) سره لا س لیک کړ . دوه کاله ور وسته د ۱۷۵۲ کال په مارچ کې درانيپادشاه د پنجاب پا یتخت لاهور ونیو. میرمنو اګرچې همه لته دصوبه دار په صفت پاتی شو، ولې د اوخت دمغلو له خوانه بلکه د احمد شاه په نوم ئې حکومت کاوه (۲۴)، د ۱۷۵۳ کال په اواخرو کې دمیرمنو دمرګ نه وروسته (چې دیوې غمجنې پیښې په نتیجه کې یا ممکن په زهرو وژل شوی وي )(۲۵) احمد شاه دلاهور صوبه داري د هغه کوچنی زوی محمدامین خان ته ور کړه، چې د غه

22—Oskar Mann, Quellen student..., S. 162; H. R. Gupta studies in the latermaghal History ofthe panjab (1707 1793). Lahor, 1944, P. 221; Joseph

Davey cunningham,History of the sikhs fromthe origin of the nattion to the battles of the sutles, Calcutta, 1903. P. 130—131;

J. Heras, Durrani influence in Northern indian "islamic Cultor", Vol. XI, 1937, No. 4), P. 5 7; "Hakikat ", P. 16.

(۲۵) دمیرمنو د تراژیدکې مړینې په باره کې دغو لاندې کسانو په خپلواثارو کې

هم لیوه‌مو ده وروسته د ۱۷۵۳ کال په‌مئی کې وفا ت شو. داسې ښکاري چې محمد امین خان دتوطئې په‌سرسته ووژل شو. د دې ګډوډیو په‌نتیجه کې لاهور د احمدشاه‌دلاسه ((ولغړید)) مګر د ۱۷۵۶ کال په دسمبر کې احمدشاه بیالاهور ونیو.

د ۱۷۵۷ کال په‌پسرلی کې احمدشاه د هندوستان څخه افغانستا ن ته راستون شو، او په لاهور کې ئې خپل کوچنی زوی تیمور شاه د((نظام))په‌حیث پریښود(په‌حقیقت کې د پنجا ب لوی‌عسکری قوماندان جهان خان دهغه‌ځای د والی په‌حیث کار کاوه). یو کال وروسته په‌پنجاب باندې مرهټیانو حمله وکړه. جهان خان ددوی سره په نښته کې شکست وکړاو د تیمورشاه‌سره یوځای دلاهور څخه‌وتښتید (۲۶). احمد شاه نه‌شو کولای چې د پنجاب له‌لاسه وتل په‌اسانۍ‌سره ومنی، نو لدې کبله د ۱۷۵۹ کال په‌منی کې درائې بادشاه بیا په هندوستان لښکر کشی ور وکړه، لاهور ئې فتح او دهغه ځای حا کم ئې دخپل وزیر شاه ولی خان وراره حاجی کریمدا د خا ن مقرر کړ. کله‌چې د ۱۷۶۱ کال په مې کې دپانی‌پت جګړې نه‌وروسته‌احمدشاه افغانستان‌ته‌راستون شو لاهور سکانو ونیو. لدې‌وخت نه‌وروسته احمدشا ه څو ځلې د پنجاب پایتخت دسکانو څخه ونیو (۲۷) ولې داقدرت ئې پیدانکړ چې د پنجا ب

---

(۲۶) فیض محمد، سراج التواریخ، لومړی ټوك، ص، ۲۰ ددې موضوع لپاره (تاریخ ابراهیم خان) او محمداسلم کتاب فرحت الناظرین، او همداول دا کتاب وګوری ء:

H. M. Elliot—Jhon Dowson, the History of India, as told by Its own Historians, Vol.VII, London 1877, P. 169, 267.

(۲۷) دنومېز ماتیك په‌سرسته کولای‌شوچې ددې بحرانې‌دورې کرونولوژي قایمه کړو، احمدشاه په‌لاهور کې په‌دغولاندې کالونو کې سکه‌وهله: ۱۱۶۱ ۱۱۶۴، ۱۱۶۵، ۱۱۷۰، ۱۱۷۱، ۱۱۷۲، ۱۱۷۴، ۱۱۷۵، ۱۱۷۶

پایتخت په خپل لاس کې محکم ونیسي . ګوره سوده وروسته لاهور او تقریباً ټول پنجا ب د سیکانو پادشاه له لاسه ووت . هر څومره چې سکان قوي کېدل ، په هغه اندازه ئې د پنجاب سیمې یوه په بله پسې لاس ته کولې او په ۱۷۸۱ کال کې ئې د لاهور صوبه ونیوله ، او ضمناً د ملتـــان صـــوبـــې درې حصې او د شاه جهان آباد صوبې هم یوه برخه ونیولې . د ټول پنجاب څخه د تیمورشاه په لاس کې فقط ملتان او اټک پاتې شول (۲۸). په ۱۷۸۰ کال کې د ملتان حکمران مظفر وټاکل شو . مظفر خان ډېر فعال او زړور سپه سالار و او پدې ځای باندې ان تر ۱۸۱۸ کال پورې پاتې شو (۲۹) .

شاه زمان کله چې پنجاب باندې پوځ کشي وکړه ، لاهور ئې ونیو ، نو دا کوشش ئې وکړ چې د اباسین لویدیځ لوری ته له لاسه وتلې سیمې چې داوخت سکانو لاس ته کړې وې بېرته ونیسي ، ولې مجبور شو چې له هغه ځایه بیرته راستون شي ، ځکه چې په افغانستان کې شورش پورته شو . د لاهور اداره ئې ځوان ولې بانفوذه سردار رنجیت سنګ ته (۱۷۹۹) وسپارله ، شاه زمان پدې تمه چې سردار بهانګی او

---

28— "Hakikat...", P. 24; G. forster, A Journeyfrom Bengal to England Vol. I P. 277—278, 282; Vol. II, P. 83.

(۲۹) سلطان محمد خان درانی، تاریخ سلطانی، ص ۱۰۴—۱۰۵ .

"Hakikat..." P. 24; Charles Masson, Narrative..., Vol, I,P. 397; Joseph Davey canning ham. History of the sikhs..., P. 194; R. Maclagan, frag ments of the History of Moolton, the Dera jat and Buhawullpoor, from Persion Mss ("Journal ... XVII, Pt. II, 1848).

راهنما گرى په مقابل کې دد ال په شکل استعما ل کړى ، کوموچې پخوا لاهور نيوالى و ، اما دشاهزمان محاسبه د رسته نه شوه : لکه څنگه چې پکاره ده له دې موده وروسته رنجيت سنگ د پنجاب لـوى پـه برخه و نيو . او هـم پـه هغه سيمو با ندې چې په هند کـې پښتنو حملې شر وع کـړې وې پدې تر تيب سره تولى سيمې ددهٔ لاس ته ورغلې . کشمير چې په هندوستان کې په مرغلره سره يا دېږي داحمدشاه ديوسپاه سالار عبد الله خان په لاس په ۱۷۵۲ کال کې فتح شو .

د کشمير حکمران حاجى کوچك عبدالله مترو شوا و « د يوان » ئې هندوسکيچون وټاکل شو (۳۰) . له دې موده وروسته سکيچون د پښتون پادشاه جانشين له کشمره څخه وشاړه او ځان ئې مستقل اعلان کړ . واې په عين حال کې سيکچون د دولې پادشاه دوهم عالم کبر متابعت ومانه (۳۱) .

د ۱۷۶۲ کال په دوبى کې احمدشاه راجه جامورنجيت د يووته(۱۷۵۰—۱۷۸۱) د سکيچون تابع کولو ماموريت وسپاره ، ولې رنجيت په خپل ماموريت کې ناکامه شو . د ۱۷۶۲ کال په منى کې کشمير ته بيه نوې پوځ کشى د نورالدين تر قوماندانۍ لاندې وشوه ،(نورالدين دوزيرشاه ولى خان له خپلوانو څخه و) . دنورالدين سره پدې پوځ کشى کې رنجيت د يود يره مرسته وکړه (۳۲) . سکيچون ماتې وکړه ، په بند کې ولويد اووروسته په دارو ځړول شو . د ير کشمير يا ن کلکيت او حتى چترا ل ته

---

(۳۰) فيض محمد ، سراج التوار يخ ، لومړى ټوك ، ص ۱۷ .

(۳۱) ددي مطلب لپاره دغه اثرو کورى ء :

وتښتيد ل (۳۳) . دکشمیر ولایت صوبه دار نورا لدین مقرر شو .

دنورالدین جانشینانو اگرچې خوځنای شورشوونه پورته کړل ، هدې باره کې عبدالکریم بخاري داسې لیکی : « هرڅوك چی د کشمیر حکمران شی ، درې کاله وروسه د کابل بادشاه په مقابل کې حتماً قیام ته لاس تیر وي» (۳۴) کشمیر تر ۱۸۱۹ کال پورې چې داوخت درنجیت سنګه له خوافتح کیږي د پښتنو شاهانو لاس لاندې و.

داحمدشاه پوځونود کشمیر مربوطې نورې سیمې چې ورې ورې سر داری وې هم تابع کړې . د دې سردار یو حاکمان دشاه په « ګورنرانو » بد لېدل ، دوی دا فغانی پادشاه جانشین ته چې په کشمیر کې و ، د کوچنی باج نه علاوه ، دده په غوښتنه د پوځونو ټولګی هم رالیږل . هدې سردار یو کې تر ټو لو لو یه سرداري لادوك وه . چې د کشمیر په شرق کې واقع وه ، . دغه سرداری دنفوسوا و عایداتو له مخې دومره غنی نه وه ، ولې دتجارت له پلوه ئې د یرا ر زښت د رلود ، ځکه چې همدې سیمې نه چین ، تبت او دهند څخه کاشغر اویار کند ته تجار تی لار تیریده ( ۳۵ ) پخوا له هغه چې د غه سیمه پښتنو فتح کړه لا د و ك

33— J. Biddulph, Tril es of the Hindookoosh, Calcutta, 1881,8. 39—40.

(۳۴) عبدالکریم بخاري ، افغان و کابل ، ص ۵،۱-۶،۵۱ ، سلطان محمدخان درانی، تاریخ سلطانی ، ص ۱۵۷ - ۹ ۵ حسین علی، زینت تاریخها، ۲۱ —۱ ۲ پاڼې.

دمغلوتابع و(۳٦).

دکشمیر ختیځ لوری ته غرنی سیمې تریوخته وخته پورې داحمدشاه تر تصرف لاندې وې،دغه منطقې دراوی اوسالتیج دریا بونو په منځ کې واقع دی او اداری مرکز ئې دکانګره ښارو. دکانګره راجه باندې افغانی باد شاه له پخوانه حکمرانی کوله . کله چې سکانو پنجاب فتح کړ، دکانګره سیمووږو سردارانو پیاازادی لاس ته راوسته (۳۷) .

احمدشاه اودده جانشینانو د جموسرداری دعوا هم کوله. پدې منطقه کې راجه رنجیت سنګ دیوحکمرانی کوله،ولې په حقیقت کې دغه راجه مستقل و(۳۸).ددرانو په هیواد وکې هغه سیمې چې د کشمیر په شمال کې داتك او کشمیر ترمنځ پرتې وې

---

36— H. G. Raverty, Notes on Afghanistan and part of Beloochistan;Jeographical, ethnographcal and historical. Extr acted from the writhi ngs of little known Afghan and Tatik histor ions, geographers, and geneologist, London, 1880, P. 308;

کله چې سکانو کشمیر فتح کړ، لا دوك سرپه سرځو کاله آزادو . ترځو په ۱۸۳۴ کال کې دګلاب سنګ اومهاراجس جموقو اوله خواونیول شو .

(A. H. franke, History of western Jibit, London,1907 P. 139—140).

37—A—H. Bingley, Dogr os simla, 1899, P. 13.

(۳۸) ج .فرسترلیکی ،چې رنجیت دیود ژوند په وروستی وخت کې مجبور شو چې نسبتاً کم څوندې باج سکانوته ورکړی.

(G. forster, A Journey from Bengal to England..., Vol. I P. 286—287);

ددې تیموري سردار ي هم په حقیقت کې مستقلې وې (۳۹).

په ۱۷۵۰-۱۷۵۲ کالو نو کې د احمد شاه پوځونو د هندو کش په شمالي برخو کې یوه سلسله د ازبکو خاني تابع کړې، چې د امو دریاب په کینه غاړه کې پرتې وې. په دې کو چنیو خانیو کې د غه ځایونه شامل وو: بلخ ، شبرغان، اندخوی کندز، میمنه (۴۰) د احمد شاه والي بلخ داد اری مرکزیه حیث وټاکه ، او په نورو خانو کې تقریباً ټول محلي خانان د والیانو په ډول پاتې شول . دوسره باید وویل شي، چې د دفاتحینو حکومت هلته چندان محکم نه وا و په ۱۷۵۵ کال کې (کله چې د خراسان څخه راستون شو) احمد شاه مجبور شو، چې هغې خواته نوې پوځي قوه واستوي (۴۱) په بلخ کې همیشه د افغاني قوا و کارنیزون پروت و. کله چې احمدشاه وفات شو ، د کندز ازبک حکمران د افغاني تسلطنه ځان مستقل کړ. تیمور شاه په کندز باندې درې واره پوځ کشي وکړه ولې د غه ټولې پوځ کشي سر په سر نا کامید لې ، تر څو چې په ۱۷۸۹ کال کې په خپله تیمور شاه ، دلوی پوځ سره جنوبي ترکستا ن ته راغی ، او تر دې وخته پورې کندز ازاد و . تیمورشاه د کندز حکمران باج ته مجبور کړ، ولې د دې خاني پوره تابع کول ئې له لاسه ونه شول (۴۲) بلخ اوا قچه اګر چې د پښتون پادشاه په تصرف کې پاتې

---

39— G. forster, A Jour ney from Bengal to Eng land..., Vol II, P. 153, Irwin, Memoir..., P. 766.

۴۰) عبدالکریم بخاري، افغان وکا بل ص ۴ فیض محمد ، سراج التواریخ، لومړی ټوك ، ص ۳۱،

J.O. Ferrier, History of the Afghans, P. 81.

41— Oskar Mannquell-enstudien..., S. 164.

۴۲- تیمورشاه د کندزیه خان باندې خپلې کامیابۍ ته دومره ارزښت ور کړ، چې

شو ل ،ولې د دېسیمو څخه شا هې خزانې ته حتی یوه روپۍ دمالیې یاباج په
نوم نه ورتلله . هلته وضع داسې وه چې تیمورشاه ونه کولای شول داسې سړی پیدا کړي چې
د هغه ځای حکمراني په غاړه واخلي . دې وضعې دشاه مخالفینو ته د مسخرولهاره ډیره
ښه بهانه په لاس ورکړه . پدې باره کې فرېر داسې لیکي : ځینې (۴۳) چې د
یوه ښار څخه بل ښار ته د ببزو کیو اونورو حیواناتو سره کو څیږي دوی خپاو ببزو کیو
ته داورزده کړل چې که چېرې دوی نه دا هو ښتنه وشی ، چې آیا د بلخ او آقچې
حکمراني غواړي که نه ؟ دوی باید په سربانډې په خاوروډو ولو پیل وکړي (۴۴)
په افغانستان باندې د بخارا او افغانستان ترمنځ د ۱۷۸۹ - ۱۷۹۰ کالونو جګړه چې
د شاه مراد بخارا یی او انتیو رستی له امله شروع شوه ، او شاه مراد غو ښتل بلخ په بخا را
پورې (۴۵) وتړي دې شخړو هم په خپل وار سره دې سیمې په مفلسې کې ډیره ستره برخه
واخیسته ، اما د یوه اوږده جنګ نه وروسته د قرارداد تړلو له مخې بلخ د تیمورشاه په قلمرو کې
پاتې شو (۴۶) . د اخبره د کولو وړده چې د جنوبي ترکستان په خانیو باندې د افغاني
شاهانو نفوذ او تسلط ورځ په ورځ کمېده . د ۱۹ پېړۍ په اوایلو کې کندز ، میمنه

---

۴۳ - په اصلي کې د ا کلمه د ((لوټي)) یا (لوتی) راغلی د چې مؤلف یې فارسي
بولي او د تقلب کارانو ، ګدایانو ، کوچیانو ، معنی ورځني اخلي .

44—J.P. Ferrier, History of the Afghanistan, P.101.

۴۵ - خریسانف ، میتروپالت نوواپتر اسکی ، د منځنۍ آسیا هیوا دو نه ، چې په ۱۷۹۰

اندخوی اوشبرغان بالکل ازاد وو (۳۷)، دیومعلوم شمیرحیوانانو نه پرته چې د شما لي سیمو حاکمانو کابل ته رالیږل ، نور هیڅ شی د دوی او افغانی شاهانو په منځ کې نه وو موجود . دافغانی حکمران نفوذ او قدرت په بلخ او اقچه تش په نوم ؤ . ددې و لا یت حکمران په حقیقت کې د هغه ځای یعنی د خلم خان قلیچ علی خان و(۳۸) .

ځینې اسناد داهم وائي چې بدخشان د احمدشاه په قلمرو کې شامل و ، ولې په حقیقت کې دا باید وویل شي چې پدې ځای کې د دراني پادشاه نفوذ ډیر لږ او ډیرې کمې مودې لپاره و .

په (۱۷۶۵) کال کې (۳۹)، چې پښتون سپاه سالار شاولی خان بدخشان ته لښکر کشي وکړه، نو هغه د میرسلطان شاه حکمرانۍ ته ئې خاتمه ورکړه . میرسلطان شاه ونیول شو ، او بیا وروسته غرغره شو . د بدخشان حاکم محمدامین خواجه وټاکل شو . دغه

---

۳۷ — عبدالکریم بخاري، افغان و کابل، (ص ، ۱۰۹ — ۱۱۰) کې لیکی چې د تیمور شاه په زمانه کې په اندخوی کې د تیمورشاه له خوا رحمت الله خا ن افشا ر حکومت کاوه . په اندخوی کې د تیمورشاه په نوم خطبه لوستل کېده ، رحمت الله خان د مرګ نه وروسته دده زوی یول دوزخان دهغه ځای حاکم شو . یول دوزخا ن هیڅ ا ته دباج او خراج په نوم څه نه ورکول ، او بالکل مستقل وه .

48— M. Elphuinstone, An account..., P. 463, 475.

د کابل پادشاه په قلمرو کې د بلخ د موجو دیت په هکله ، ګ ، دروویل هم لیکی «په ۱۸۱۲، ۱۸۱۳ کالونو کې پارس ته سیاحت»، د وهمه برخه ، مسکو ، ۱۸۲۳ جغرا فیوي تبصري ، ص ۳ .

سړی د کاشغر خواجه ګانو له زامنو څخه و،اودشرقي ترکستان څخه دچین(سمکن چین وي) امپراتورځیان‌اون عسکر وشاړه .

بدخشان ته دشاه‌ولی خان‌دپوځ کشي‌اصلي علت داو،چې احمد شاه غوښتل په بدخشان کې داسې طرفدار حاکم ولري ،چې هغه دافغانستان سره‌دوستانه‌روابط وساتي .شاولی خان چې هلته میرسلطان له پیښووغورځاوه ،اوبیا کله چې داحمدشاه اوځیان لون ترمنځ منا قشه سخته شوه ، نو میر سلطان شاه د ځیان‌لو ن طر فد اري وکړه (۵۰)

په بدخشان کې داحمدشاه حکومت حتی د محمدامین په‌وخت کې تش په‌نوم و(۵۲). دمحمدامین دمرګک نه وروسته د میرسلطان شاه زوی دبدخشان حکمرا ن شو، دمیرسلطان شاه د زوی په‌راتګک سره پدې سیمه کې دافغاني‌شاهانونفوذصفرته ورسید ، اروین (دالفنتو ن دهیت‌غړی) وائی ،چې‌دافغانستان سرحد دشمال ختیځ لو رې ته دهغو غرونو څخه تیریده، چې افغانستان ئې دکشمیر او بدخشا ن څخه بیلاوه ،بدې معنی چې بدخشان ئې دافغانستان نه دباندې‌باله(۵۳).

حسین‌علی‌لیکی، چې‌داحمدشاه‌په پوځونوکې‌دکشم عسکري‌تولګی هم‌شامل‌و.

---

۵۰ـغبار،احمدشاه بابای‌افغان، فصل ۳۵ .

۵۱ـدمیرزاشمس بخاري یادداشتو نه ، دبخارا ، خوقنداو کاشغریوه‌سلسله پیښې د،و. وګریګوریف ترجمه اوتبصري، کازان ۱۸۶۱ (دکازان پوهنتون د پوها نو یادداشتونه ، «لومړی کتاب ۱۸۲۱ ،ص ، ۴۳ـ۳۵دهمدې موضوع لپاره‌دافغانستان په‌باره کې اسنادوګوری‌ع:۱۷۶۳-۱۷۶۶ کالونه، د،ا،بانه ۱۴ ن،یا،بیچور ین د

د دې نه دا نتيجه ګيري کيداى شي چې دغه سيمه د بدخشان امير له تسلط نه دباندې وه، او د افغانستان سرحد يې له شمال ختيځ لوري ته په هغه وخت کې تقريباً د اوسنی قطغن ختيځ سرحد څخه تيريده (۵۴). د درانيانو امپراتوری سرحدونو ترسيمول د احمدشاه اوده وارثانو د جهان د سياست د کاميابۍ او ناکامۍ سره مستقيماً تړلي وه. د ۱۷۶۱ کال په دوبی کې د درانيانو امپراتوري جنوب ختيځ لوري ته سرحد تقريباً د ډيلی په سل کيلو متری کې واقع و. ولې څو کاله وروسته د سکانو د شورش په سبب احمدشاه ټول پنجاب له لاسه ورکړ. اما پښتون پادشاه لا په دې وخت کشمير د ملتان سره ساته، د سند بهاول پور، کلات او حتی د مکران (۵۵)، ليرې سيمې د احمدشاه تابع وې. په وروسته کالونو کې آن په نولسم پيړی کې د دراني امپراتوری تر سقوط پورې د هغه سرحدونو په هندوستان کې ډير تغيير ونکړ. په ۱۷۵۵—۱۷۹۶ کالونو کې د افغانستان لويديځ سرحد کې تقريباً کوم خاص تغيير رانغی. شمال خواته د ازبکو په سيمو کې په جنوبی ترکستان کې د احمدشاه جانشينانو چې کومې برخې لاس کې لرلې (تقريباً تش په نوم وی) له هغې جملې څخه يوازې بلخ او اقچه وو. د دې منطقو نوری خانی د احمدشاه د ژوند په وروستيو کالونو کې تقريباً آزادې غوندې وې.

د درانيانو امپراتوري سقوط سره سم ځينې منطقې هغو هيوادونو ونيوې چې افغانستان ته څيرمه پراته وو. ځينې نوري سيمې ځانته مستقلې شوې. د پښتنو ځانګړې سيمې هم ټوټه ټوټه شوې او په نتيجه کې د برتانوي استعمار ښکار شوې. د پښتنو ځينو منطقو اتحاد د يوه دولت په شکل د نولسمې پيړ ی په منځ کې وشو




# دوهم فصل

## د درانیانو د امپراتورۍ مرکزي دولتي دستګاه او اداري ارګانونه

د اتلسمې پېړۍ په منځ کې د افغاني نوي دولت تشکیل نه وروسته، زیات قدرت او ممتاز موقعیتونه د دراني ( ابدالي ) قبیلې اشرافو لاس ته وروغلل. د دې کار اساسي دلیل دا سې بیانیږي چې د نادر افشار د لوی دولت د سقوط په وخت کې دراني قبیله، د نورو پښتنو قبایلو په نسبت په اجتماعي او اقتصادي لحاظ تر ټولو مخکښې وه. په افغاني ټولنه کې د فیوډالیزم انکشاف یو دول پرمخ نه ځی، او په مختلفو قبایلو کې بېل خصوصیات لرل. د دې سوال ( د فیوډالیزم انکشاف . . . ) په باره کې ای. ام. پروفیسور رېسنر دغه لاندې اساسي عوامل لیدل چې د درانیانو په قبیله کې ئې فیوډالي روابط تشریح کړل، او دغه عوامل د دې سبب شول چې په پښتنو کې لومړی فیوډالي دولت د دوی تر حمایې لاندې تشکیل شو.

مروتو او بنو څو لپاره ممیزه صفت و ، د درانیانو ټولنې په داخل کې چا نه پیژاند ه .

د درانیانو د مبادلوی او جنسي اقتصاد زیات سرعت پیدا کړی و ، چې د دوی کلي د هغه فعالې تجارتي لارې په سر باندې پراته وو ، چې شمالي هندوستان او خراسان ئې سره تړل . دې تجارتي لارې د کندهار ولایت او نورو ښارونو سره ټینګ اقتصادي روابط لرل .

په هغو سیمو باندې چې درانیان پراته وو ، د صفویانو څخه نیولې تر نادر افشار پورې د دوی خانانو ته جایګیرونه او تنخواوې ورکول کیدې (۱) . دې کار که له یوې خوا درانیانو سره په جانشیني کې مرسته و کړه ، نو په همدې دوره کې ابدالي خانان لا پسې قوي شول . څکه د دوی د بزګرانو زیاتې ځمکې لاس ته کړې وې .

د دې عواملو د ابدالي اشرافو د اقتصادي او سیاسي موقف په ټینګوالي کې بې شکه لوی رول لوباوه . د ابدالي خانانو نفوذ او قدرت نه یوازې په خپلو سیمو کې په غیر پښتنو بزګرانو باندې خپریده ، بلکه د خپلې قبیلې په لاندنیو قشرونو کې لا پسې محکم شو . په غربي افغانستان کې د غلجیانو اساسي رقیبان درانیان وو . ولې تر دېرې اندازې پورې د غلجیانو پوځي قوت د نادر افشار سره په جنګونو کې مات شوی ؤ .

بادشاه ــ د افغاني دولت رئیس بادشاه ، چې د درانو (۲) لقب ئې درلو د . د غه لقب د لومړي ځل لپاره احمدشاه ابدالي ته چې د سدوزیانو د قبیلې څخه و ، ورکړ شو

---

۱ ــ ای . ام . رسنر په پښتنو کې د فیوډالیزم انکشاف او د دوی د دولت تشکیل

سدوزیان په ابدالیانو کې خان خیل دي(۳) سدوزیانو دخان خیلو په صفت ترنورو قبیلو لوړ اجتماعی موقعیت لاره ، اوپوه سلسله زیات اختیارات ئې درلودل . د مثال په ډول ددې قبیلې نمایند ګان دکوم ستر خیانت اویا جنایت په مقابل کې چاپه دارنه شو ای څړولای .

ددې قبیلې په غړیوباندې دقصاص قانون هم نه تطبیقیده. دسدوزیانو لونړه خوینډې دخپلې قبیلې نه دباندې نه ور کیدې (۴) .

دسدوزیا نو قبیلې ددې لوړ واجتماعی امتیاز اتو،ددوام او قوت په باره کې ډېر زیات حقایق موجود دي .دمثال په توګه کله چې داحمدشاه لمسي شاه محمود خپل نسقچي باشي عظیم خان ته امر وکړ چې دسدوزیانو قبیلې څو کسه په غرغره کړي، (البته دا کار دهغې مقدسې عنعنې له مخې چې ددرانیانو په قبیله کې موجوده وه ، مخالف و) .عظیم خان دشاه محمود فرمان اجرا نکړ ، عظیم خان دفرمان دنه اجرا په صورت کې تر لو ناوړ وعواقبوته تن ورکړ . دغه غضبناك پادشاه (شاه محمود) دشاهي ګارډ غلامانو ته امر ورکړچې عظیم خان دتوپکو په کنداغونو ووهي

---

۳ ـ سدوزیان دروایت له مخې دسدو اولاده ده چې د لو یړی شاه تهمسپ صفوي په زمانه (۱۵۲۴ - ۱۵۷۶) کې ئې ژوند کاوه ،دراورتي په قول سدو په ۹۶۵ ه (۱۰۵۸) کال کې دنیاته راغلی دی Raverty. C.H. کتاب ،

(Some remarks on the origin of the Afghan people "Journal of the Asiatic Society of Bengal" Vol. 23,

اوبیائې په غرغره کړي (٥) . دا هم ویل کیږي چې دبخارااسیرحمدرشاه، د شجاع د لو ر د طلب لپاره سړي راولیږل ، والي دحیدر غوښتنه پدې د لیل ر د ه شوه ، چې سدوزایان خپلې لونړه ، خوېندې د خپلې قبیلې نه دباندې نه ودوي(٦) .

دپښتنو دولت د رئیس په صفت د احمد شاه په انتخا ب کې پرته لدینه چې د ی په اصل سدو زی و ، نو رو عوا ملو هم تاثیر درلود . لدې عواملونه یوه ته معاصر ا فغا نـي مـؤ ر خ م. غبا ر د ا سـې ا شـا ر ه کـو ي:

---

5— M. Elphinston, Anaccount of kingdom of Kabul, and its dependencies in persia Taritary and India, comprising a view of the Afghannation and a history of the Dooronee manarchy, London, 1815, P. 282--- 283;

فریر لیکی ، چې دنورمحمد خان دپادشاه په حیث د نه انتخاب دلیل هم داو، چـې د ی د ا شـر ا فـو کـو رنـۍ تـه منسو ب نـه و و ،

(J. P. ferrier history of the Afghan London, 1858, P. 8.

٦ — فیض محمد ، سراج التواریخ ، لومړی توک ، ص ۹ ٦. پدې موضوع کې شاه زمان دوره سخت کیږنه وه، لکه دده ورورشاه شجاع د ۱۸۱۰ کال په حد و دو کې حیدر بیا هم وکولای شو ل چې دشاه زمان لور تاج جهان سره واده و کړي ، داهم باید ویل شي چې پد ې وخت کې شاه زمان دافغانستان پادشاه نه و .

(دشاهزاده محمد مصطفی اثر ـــ د افغانستان تاریخ ، د پښتنو شاهانو داخلاقو لهقوله)، ادبی ورځپا نه ، (۱۳۸۳ ، ۲ جمبر) ، ص ، ۸۸۱، کله چې احمد شاه دبادشاه په صفت انتخاب شو ، هغه چاچې به سدوزاپانوته بې احترامي کوله ، اوبا به ئې دوی ته ضررر ساوه ، هغه ته به ئې سخته جزاور کوله .دمثال په ډول په ۱۱۸۱ ه کال

ګله چې د پاچا د شاه انتخاب لپاره د ابدالي قبیلې خانانو
«جرګه» راټوله شوه، نو دوی د اشې په نظر کې ونیو، چې د سدوزیانو
قبیلې شمیر لږ دی او پدې ډاډه وو چې احمدشاه به د خپلې قبیلې په لږ قوت سره ونه
کړای شي، چې د نورو او یو قوي قبیلو خانانو قوت او خود سرۍ ته ضرر ورسوي
(۷). د احمد شاه په جرګه کې د ښو لاندې قوي او با نفوذه پښتنو خانانو برخه
اخیستې وه: نور محمد خان، محبت خان پوپلزی، موسی خان اسحق زی، نصرالله
نورزی، حاجي جمال خان بارکزی او ځینو نورو پدې ترتیب سره سردارانو ځوان
احمد شاه د پښتنو پادشاه په صفت وټاکه چې عمر ئې له ۲۵ کالو زیات نه و. د نور محمد خان
نه پرته (د نور محمد خان په باره کې ماخذونه په یوه نظریه نه دي).

ځینې ماخذونه نور محمد خان په غلجیو پورې تړي او ځینې نور چې د احمدشاه
د انتخاب په «جرګه» کې ئې ګډون درلود، د ابدالیانو «درانیانو»
قبیلې ځینې وو. د احمد شاه په انتخاب سره د ابدالي خانانو لپاره د پښتنو په جدید
التاسیس دولت کې د ممتازو دولتي ارګانونو لاس ته راوستلو موضوع هم تضمین
شوه. ددې موضوع تاثیر د ابدالیانو قبیلې د نوم بدلون په (درانیانو) باندې هم
بې څه نه ، نه و.

د احمد شاه په انتخاب کې د روحانیونو ستر نماینده مشهور صوفي صابرشاه، مرسته
هم د پوره یادونې وړ ده. دا ځکه چې صوفي صابر شاه د احمد شاه کاندید ي

سرتاج کښېښو (۸). داحمدشاه په انتخاب کې بالاخره دا هم باید ووایو چې دده خپل پرستیژ او حیثیت هم بې تاثیره نه و. احمد شاه د نادر شاه سره نو کري کوله، او دهغه سره ئې په ډېرو جنګونو کې ګډون کړی و. پدې جنګونو کې احمدشاه د پښتنو دهغو سپرو تولګیو قوماندانی په غاړه خیستی وه چې د پارس په پوځونو کې یې وظیفه اجرا کوله (۹). کله چې احمد شاه دافغانی دولت د رئیس

---

۸ــ ج. سرکار، لیکی چې دسدو زایانو، قبیلې او په هغه جمله کې په خپله احمد شاه دمشهور صوفی صابر شاه سره نږدې تعلقات لرل،

(Jadunathsarkar, Ahmad shah Abdali in India, 1741 (Islamic culture), Vol. VI,1932 P. 216.

ددې موضوع لپاره دغه لاندې کتابونه وګورئ: دمحمدامین کتاب مجمل التواریخ ص، ۷۰، دفیض محمد اثر ((سراج التواریخ)) ومړی توک، ص، ۱۰، دمحمود الحسینی اثر ((تاریخ احمد شاه)) اوهمدا ډول ددې لاندې کتاب ترجمه چې عسکرمان په لاس شوې ده مطالعه کړئ:

(oskar man, Duellenstudien Zur Geschichte des Ahmad shah Durrani (1747— 1773), ("Zeitschr ft" Bd. 52 Leizig, 1898) S. 175;

داحمد شاه په انتخاب کې ددې مشهور صوفی رول ته معاصرمعروف افغانی مؤرخ ا. ع. کهزاد هم په خپل اثر:

(Two caronations ... ("Afghanistan" 1950,No. 3) P. 38.

کې اشاره کوي، همدې موضوع ته ج. سرکار په خپل مضمون کې چې په Aless on ofindian history

په حیث وټاکل شو، نودرانی خانانو پدې کوشش کېشول، چې دخپلو ښولاندې خاوره لا ټینګه کړي. په دولتي چارو کې خپل نفوذ

خپور کړي، اوهم دولتي اداروکې لوی پستونه په خپل لاس کې واخلي.

له همدې سببه ددرانیانو قبیلې خانانو ته په اداري ماشین، پوځ او دربار کې په میراثي توګه لوی اومهم مقامونه و روسپارل شول. هلته کې شک نشته چې ددرانیانو قبیلې خانانوته لوی پستونه ورکول، پوله هغوشرطونوڅخه ؤ چې داحمدشاه پادشاه کیدل وربوري تړلي و. داهم دامکان څخه لرې نه ده چې داحمدشاه اودراني خانانو په منځ کې نور تعهدونه هم موجودوي، ولې اوس لاس په لاس پدې چې زموږ سره معلومات نشته، څه نه شو ویلای. داحمد شاه دانتخاب نه وروسته دده لپاره تر ټولو مهمه تکیه دپښتنو هغه عسکري ټولګي و، چې د خراسان څخه داحمدشاه سره وطن ته راستانه شوي وو. دغه دپښتنو پوځ اګر چې په شمېر کې دومره زیات نه و، ولې ډېر تجربه کاراوپوخ پوځ و. ځکه چې دنادرافشار سره یې په ډېرو لښکر کشیو کې برخه اخیستې وه. دوهم داچې داحمدشاه دانتخاب نه وروسته دنادرشاه دپوځونو ځینې نورې دستې هم د پښتون بادشاه په لوري راتیرې شوې، کومې چې دنادرافشارتې، ولې له منځه تللې امپراتورۍ په ختیځو سیمو کې پرتې وې. (مشهورایراني سپه سالار تکي خان شیرازي هم دعسکري پوځ یوه برخه احمدشاه ته راوسته). دریم داچې دنادرشاه دقتل نه وروسته دده دکمپ په چورولو کې احمد شاه ته ډېرې پیسې

هم دأحمدشاه لاس ته ورغی (۱۱) .

کله چې احمدشاه په کندهار کې ځان محکم کړ ، نو بیایې غزنی ، کابل اوپېښور دځان تابع کړل ، اوله هغه وروسته د پښتنو دختیځو سیمو قبیلو خانانو له خوا په رسمیت وپېژندل شو (۱۲) .

داحمد شاه دموفقانه پوځ کشیو په نتیجه کې د هغه لاس ته ډیرې ارتې سیمې ورغلې چې د هغو په نتیجه کې د دولتي محکمو لوپه ذخیره جوړه شوه اود هغه دولتي ذخیره ددې سبب شوه چې د پښتنو قبایلو له نفوذه په پوځي اواقتصادي لحاظ احمد شاه لږ څه ازاد شو .

په شمالي هندوستان کې انګلیسي اجنټ په ۱۷٦۷ کال کې خپلو مقاماتو ته داسې راپور ورلېږلی کړ ، چې احمدشاه «خپل نفوذ دخشونت له مخې دنا د ر شاه

---

۱۱ــ عبدالکریم بخاري ،افغان وکابل، ص و فیض محمد « سراج التواریخ » لومړی توك ، ص ، ۱۰ ،دوي هغه تعداد پیسې چې داحمدشاه لاس ته ورغلی ، ۳۰ ملیونه ښيي ،البته د ۱۱ ند ازه دیقین څخه لیرې ښو ندې د ه ، فریر د خپل کتاب History of Afghan اومحمدامین د «مجمل التواریخ» په لسم مخ کې لیکي ، چې د احمد شاه لاس ته درې سوه اوښان په لاس ورغلل ، چې په قیمتي شیانو باندې باروو، اوداهغه مالیه وه چې دنادر افشار لپاره ټوله شوې وه، (.داوو (A. Dow ) په خپل کتاب :

"The history of Hindostan, Vol. 11, London,1770, P. 341"

اوهم دهر. ګوبټاج سرکار،په نظر یه هغه پیسې چې داحمد شاه په تصرف

ځخه کم نه چلوي . ولې ددې سره سره احمدشاه دومره بې رحمه او خونخوارنه دی، لکه «نادرشاه» (۱۳) . احمدشاه دقبیلو خانانو نظر یو ته د مهمو پرابلمونو په حل کې پوره غوږنیوه . د هرلوی اوواړه کارتر سره کولو دمخه ئې دخانانو سره مشوره کوله .

م ، غبار لیکي چې احمد شاه دقبیلوخانانو څخه په پایتخت کې یوه دایمي جرگه جوړه کړي وه اوددې جرگې سره به ئې دمهمو دولتي کارونوپه باره کې مشورې کولې» (۱۴). فریر (دعبدالله خان قلمي نسخې په استناد ) لیکي چې «دنادرشاه په پوځ کې داحمدشاه په شمول اسوپښتنو سردارانو نوکري کوله اودوی داحمد شاه د سلطنت په دوره کې یوه شورا تشکیل کړه . احمد شاه ددې شورادمشری او تصویب نه پرته په خپل سر هیڅوخت مهمه فیصله نه کوله ، اوهم کله چې احمد شاه دې شوراته کومه وعده ورکوله ، هغه ئې خامخاتر سره کوله » (۱۵) .

احمد شاه اوددې جانشینانو دپښتنو قبایلو خانانو اواشرافو سره خویښي اودوستي ته ډیر ارزښت ورکاوه . په همدې کبله دمثال په توگه احمدشاه خپل زوی سلیمان ته د شاه ولي خان بابړي لوروا ده کړه . دده بل زوی تیمور شاه د درنیانو قبیلې تقر یبا ټولولویو پښتنو څخه ، لکه دبارکزیو ، اسحق زیو، نورزیو، سدوزیو او اڅکزیو سره دوستي وکړې . په ختیځه پښتو نخوا کې تیمور شاه د یوسفز یو قوي قبیلې نه ځان ته واده وکړ . دتیمور شاه زوی شاه زمان دختکو سره دوستي وکړه (۱۶). دغه دوادونو فهرست په همدې دول پسې دوام دراود .

---

13—A. Dow the history of Hindostan, Vol. 11, P. 383.

۱۴ ـ غبار ، احمد شاه بابای افغان ، ۸ فصل .

15— J. P. Ferrier, history of the Afghanistan, P. 94—95.

د تیمور شاه د مرګ نه وروسته د ده زامنو هر یوه د تاج وتخت په دعوې کې په هغه قبیله تکیه کوله ، کومې ته چې ئې مور منسوبه وه . ددې داخلې جنګونو په وخت کې د شاه محمود سره د شاه زمان په مقابل کې د بارکزیو قوي قبیلې کومکونو فیصله کوونکی رول درلود . په دې ترتیب سره دقبایلو خانانو په واقعیت کې د تاج وتخت سوال حل کاوه (۱۷).

څرنګه چې احمد شاه په افغاني قلمرو کې لوی واکمن و، نود ((سکې ضرب او خطبه)) هم یوازې دده په نامه وه . احمدشاه دافغانی دولت دمشرانو رئیس په صفت نورو دولتونوته سفیران استول او هم ئې ددوی سفیران خپل حضور ته منل ( ۱۸ ) په افغانی دولت کې د ټولو عسکرې قوا وولوی قوماندان هم احمدشاه بلل کیده. د خانانو ټاکل او بدلول، د صوبواو سیمو د حاکمانو مقررول، د خپلو نږدې کسانو او مامورینو ټاکل، دا ټول صلاحیتونه د پادشاه له خواصادریدل، او همدا رنګه قضائیه قوه هم د پادشاه له خوا ټاکل کیده. پادشاه خپلو رعیتو ته فرمانونه استول ، او دقبایلو مشران ئې تعینول.

ددې ټولو صلاحیتونو سره چې مخکې اشاره ورته وشوه، احمدشا دپیاوړی مجبور ؤچې د دولتی مهم پستونه، لکه څنګه چې مخکې وویل شول. په سرداری ډول هغو خانانو ته ور کړي چې د دراني قبیلې او یا د هغې څانګو ته منسوب وې. د دې کار دا معنی لرله ، چې د احمد شاه انتخاب په ډیر کوچنی جمعیت کې محدود وو. که فرضاً اقلیت یا ممتاز قشر څخه و تلای او د اسې کسانو ته دا امتیاز ور کول کیدی چې د هغه محدود اقلیت څخه نه وای، نو په هغه صورت کې عدم رضایت او دسیاسی فضا خړ پړ تیا یو ضروري کار و.

---

۱۷ - عبدالکریم بخاري، افغان و کابل، ص ۱، فیض محمد، سراج التواریخ ، لومړی ټوک، ص ۳۵، س .ق رشتیا افغانستان، ص ۳ .

(۱۹). همدې وضعې د قبایلو د خانانو په انتخاب کې هم صدق کاوه. دا په دې معنی چې هلته هم د پادشاه صلاحیت د خان خپلو نمایندګانو له خوا محدود شوی و. ولې په دې کې شک نشته، چې احمدشاه د خپل ځانګړي پرستیژ، سیاسي استعداد د اوږو سلسله نورو عواملو چې هغوی ته دمخه اشاره وشوه، د خپل سلطنت په موده کې زیاته ازادي لاس ته راوستلې وه، ولې دده د سلطنت په وروستیو کالونو کې د مخکانو په مقابل کې د احمدشاه عدم کامیابي ددې سبب شوه چې د پښتون پادشاه سالمي او جنګي قدرت تر دېرې اندازې پورې متزلزل کړي.

د تیمورشاه د سلطنت په موده کې فیودالي سانترالي پروسې هم روانې وې، ولې داسې اسناد هم شته چې هغوی د تیمورشاه ازادي د پرنفوذه قبیلوي خانانو د قدرت له ساحې نه د باندې بیایي (۲۰). تیمورشاه کوشش وکړ چې ځانګړي ازادي او قدرت لاس ته محکم

---

۱۹ – کله چې شاه زمان، رحمت الله وفادارخان سدوزی د خپل وزیر په حیث انتخاب کړ، نو د پښتنو سردارانو په پته ددې انتخاب په مقابل کې په مخالفتو نو پیل وکړ. (عبدالکریم بخاري، افغان و کابل، ص ۳۰، دوزارت په شوکې باندې د رحمت الله وفادارخان مقررول تر زیاتې اندازې پورې تړلې و، چې د د خوردشاه زمان د مکه ورور شجاع ښځه وه.

۲۰ – فیض محمد، سراج التواریخ، لومړی ټوك ص، ۳۶، کریسانف میترو پالیت نوا پتراسکی (دلرغونو روسانو او د وی د تاریخ په باره کې هغه لکچرونه چې د اسرا تور په تولنه کې ویل شوي او په ۱۷۹۰ کالونو کې د مؤلف له خوا د منځنۍ اسیا هیوادونو ته وقف شوي دي، لومړی کتاب، ۱۸۱۶، ص ۱۰۶.

کړي . پدې لاره کې تیمور شاه داسلامي روحانیونو په فوقاني قشر ،نظامي ګارد،

برسراقتداره بروکراسي باندې تکیه کوله .نه ښې غوښتل چې دقبایلو خانانو ته دمهمو

دولتي چارو په فیصلو کې برخه ورکړي . دتیمورشاه دارویه ددې سبب ګیده چې دده

او مرکزي حکومت په مقابل کې دقبایلو خانانو ، او په ولا یاتو کې د حا کما نو

شورشونه راپورته کړي. دتیمورشاه دوژ لوارپاره څوځلي توطئې جوړې شوې، ( دځینو

معلوما تو له مخې تیمور شاه مسموم کړشو)(۲۱).په(۱۷۹۹) کال کې دشاه زمان

په دوره کې د ناارا ضوسر دارنو داسې پلا نو نودسیسه جوړه کړه ،چې د هغوله مخې

دشاه زمان قدرت محدود یده .

دې سردارانو کوشش کاوه، دنورو غوښتنو په لړ کې دا غوښتنه هم عملي

کړي،چې بادشاه باید دسردارانو له خوا انتخاب ، اوداحق هم ولري چې دعدم رضایت

په صورت کې ددولت رئیس بر طرف او په ځای ئې بل څوک انتخاب کړي (۲۲) .

پدې ترتیب سره دقبایلو خانانو غوښتل چې له یوې خوا څه ناڅه دباد شاه قدرت

څخه خپله ازادي راو باسي او هم په عین وخت کې په دولتي چارو کې دخپلو نظر یو

نفوذ هم دحقیقت څخه لیرې نه ده ، چې ویل بې دښتنو بادشاه په وا قعیت کې په

«پوځي ارسطو کراسي کې ابدي دیکتاتور» بلل کیده . داچې احمدشاه دصوفي صا برشاه

پیشنهاد شوي لقب «دردوران» څخه انکار وکړ ، او په مقابل کې یې د«درد ران»

مطلب لپاره واضح دلیل دی .(۲۳) ددراني قبیلې لپاره که پادشاه ترهرڅه دمخه رهبر و، (ترکومې اندازې پورې چې معلومات شته دپښتنو قبایلو او په هغه جمله کې ددرانیانو لپاره خپل پادشاه په راشه درشه، خبرو اترو کې دومره دیمو کرات او بې تکلفه ؤ، چې مثال یې دختیځ په نورو هیوادو کې نه دی لیدل شوی . دا خبره دهغه وخت ټول سیاحان په اتفاق سره لیکي .ولې دهغو سیمو لپاره چې پښتنو فتح کړې وې ، پادشاه داسې امپراتور و، چې نامحدود قدرت یې درلود .

داحمدشاه دغه دوه ارخیزه سیاست دده د ګټردومميزه صفات و و . احمد شاه لکه څنګه چې دمخه ویلل شول ، دټولو پښتنو قبایلو لوی رهبر، ولې دد ې سره سره دټولو دمخه دده مقام ، حیثیت اوقدرت دپښتنو قبایلو په منځ کې پدې پورې تړلی و، چې دی په درانیانو کې دخان خیلو مشر، اود پښتنو قبایلو دباندې دده قدرت د هغو فتوحاتو سره مربوط و، چې پښتنو کړې وې .

دمساعدو شرایطو د نشتوالی په صورت کې پادشاه کولای شول چې په هغه او دغه صورت خپل سیاست عملی کړي ، پرته لدی چې دپښتنو قبایلو خانانو سره مشوره وکړی او یادهغو نظریو ته ارزښت ورکړي . البته په داسې شرایطو کې دپادشاه لپاره دهرڅه نه دمخه ښه وسیله داوه چې دخانانو په منځ کې دنظریو اختلاف او دښمنې نه استفاده وکړي . ددې لپاره چې پښتون بادشاه نامحدود قدرت لاس ته کړي . دی مجبور و، دقبیلوي خانانو او دقبیلوي اشرافو خود مختاري ماته کړي، ولې دوی (احمد شاه او دده جانشینانو) ونه کولای شول، چې دغه خپل نیت عملی کړي .

## په ملکي دفترونو کې د وزارت څوکۍ او نور عالي منصبونه

په دولت کې بهترین پست دوزارت رتبه وه. وزیر د دولت رئیس (بادشاه) نږدې مرستیال ګڼل کیده. دوزیر او نورو دولتي مامورینو تاکل چې په میراثي دول یو په بل پسې راتلل، ددوی وظیفو او صلاحیتونو اندازه لګول تر یوې اندازې پورې مشکل کار دی. ددې کار مشکل ترتولو پدې کې دی، چې پادشاهانو اساساً نه غوښتل دعالي رتبه مامورینو نفوذ او قدرت ډیر زیات کړي. ددې لپاره چې دعالي رتبه دولتي مامورینو نفوذ اوقدرت محدود کړي، نو کله کله به دوی مختلفو وسایلوته لاسونه اچول. بادشاهانو به زیاتره خپل نږدې باوري کسانو ته لوړې رتبې ورکولې چې دهغو رتبو په څنګ کې بهلوی صلاحیت هم ورسره ؤ. لوی دولتي مامورین به پدې صورت کې یوازې دخپل مقام اوصلاحیت ساتلو په فکرو. دهغو معلوماتو له مخې چې زمونږسره دي ویلای شوچې دوزیر دوظیفې اوصلاحیت په چوکاټ کې دغه شیان راتلل:

دبادشاه په مشوره دخارجي سیاست رهبري ' دبادشاه له طرفه سیاسي مکاتبه (۳۲)، په داخل کې دنظم اوامنیت ساتنه اومراقبت. پدې جمله کې دلا روا و غریزو درودامنیت ساتنه هم دوزیر په غاړه وه. په ټولو مرکزي دفترونو، په و لا یتونو کې د

---

۳۲ – وزیر شاه ولي خان، داحمدشاه له خوانه په هندوستان کې دبرتانوي نظامي مقاماتو سره مکاتبه کوله. ددې موضوع لپاره دغه لاندې اثرو ګوری:

Bengal and Madras paper, (1757—1795), Military consultation volume, Vol.III, No. 14,Calcutta P.40—41;

کله کله به مهمو حالاتو کې په خپله دبادشاه امضاء ته مکتوبونه استول

حاکمانو اوعالي رتبه مامورينو کنترول ، دلوړو منصبونو لپاره د کانديدانو انتخاب اوهغه د پادشاه په امضاء رسول .

داحمد شاه دسلطنت په دوره کې دده نه وروسته دوهم سړی وزير گڼل کيده، اوهغه ته دا مير الامرا لقب ورکړی و (۲۵). دوزير مقام چې ميراثي شکل يې درلوده دپوپلزايانو په قبيله کې دبامیزیو خانانو ته ورکول کيده.لومړی وزيريې دپښتنو يوبا نفوذ مسردار بيگي خان باميزی و، چې وروسته دشاه ولي خان اواشرف الوزرا لقب ورکړل شو (۲۶) څنگه چې وزيردپوپلزايا نوڅخه و ،نو پدې سبب د لويو مامورينو زياته برخه هم ددې قبيلې څخه وه ، داحمدشاه له مرگ نه وروسته تيمورشاه شاه ولي خان ووژه .لدې پيښې وروسته يې بيا دا کوښښ و نکړ، چې پدې ځای باندې بل وزيرمقرر کړي .که تيمورشاه بل وزير مقررولای، نو پدې صورت کې به مجبور وای چې يابې دغه څوکۍ دشاه ولي خان ،بل کوم نږدې دوست ته ورکړی وای يابې د عنعنې عکس عمل کړی وای. پدې معنې چې بالکل بې دبلې قبيلې څخه کوم يوخان پدې څوکۍ باندې تاکلای وای.تيمورشاه نه غوښتل چې ددې دواړو فيصلو څخه يوه هم عملي کړي .دهمدې وجهې نه د تيمور شاه دسلطنت په ټوله دوره کې پدې څوکۍ باندې څوك ونه ټاکل شو .ددولت پهاداري کارونو کې دتيمورشاه سرمتيالان هغه کسان وو،چې دوی اساساً کومې پښتنې قبيلې

---

۲۵–عزيز الدين پوپلزايي ،تيمورشاه د راني ص ۱۶۵ .

۲۶ – عبدالکريم بخاري ،افغان و کابل،ص ۹،لاغه وخت وروسته دتيمور شاه په

ته منسوب نه‌و . د تیمور شاه مرستیال شیخ عبداللطیف جامی و،چې دمالیې، اداري کارونه هم دده په‌لاس کې وو. په دولتي چاروکې د تیمور شاه بل مرستیال قاضي فیض‌الله شاهي و (۲۷).

شیخ عبداللطیف اگرچې په رسمي‌ډول د وزیر په نوم‌نه یادیده،ولې په واقعیت کې د وزارت تقریباً ټول کارونه دده په‌لاس کې وو. کوم کارونه چې‌دمالیې سره تړلې‌وو مخکې له‌دینه چې پادشاه هغه دفرمان په‌شکل صادر کړي،اول دشیخ عبدالطیف مهر ورباندې لگیده (۲۸).

ددرانیانوپه امپراتوری کې ترټولو مهمه اداره هم، دمالې اداره وه‌چې هغه‌ته (( دیوان اعلی )) ویل کیده د مالیې د دفتر ته کارل مارکس ( دخپلوخلکو دچوړولو دفتر وایه) (۲۹). دمالیې د دفتر رئیس داحمد شاه په وخت کې (دیوان بیگی) نومیده، داحمدشاه نه‌وروسته دده جانشینانو په دوره کې ددې دفتر رئیس ته«مستوفی» ویل کیده«دیوان اعلی» دغه لاندې وظیفې اجرا کولې: دمستقیمو اوغیر مستقیمو مالیوټولول، په‌ټولودولتي‌عایداتواوستاینوباندې کنترول، ددولتي‌هکو «خالیصو» اداره ، دټولو مصارفوحواله، ضرب خانې ، دغذایي موادو؛ جنسي ذخیرو مراقبت اوساتنه اوخلکو ته‌د نغدو رو پو پورو نه .

څنگه چې‌ددرانیانو په‌عصر کې د«فواید عامه» په‌نوم سره کومه اداره نه وه

---

۲۷ ـ عبدالکریم بخاري، افغان‌وکابل،ص ۳،

J. P. ferrier, history of Afghans, P. 98;

عزیزالدین پوپلزائی ، تیمورشاه دراني ،ص ۷۳-۱۱۱— ۱۵۲ .

نوداو بو لګولو چارې ذدولتي دفترونو ترمنځ جوړښت او دپوځي استحکاماتو ابادي اوداسې نور کارونه هم «دیوان اعلی» ته حواله کېدل. د«دیوان اعلی» مشر کی داحمدشاه دسلطنت په دوره کې عبدالله خان پاسېزي اداره کوله (۳۰).

دنغدوپیسو اونوروجنسي موادوذخیرې د((خزانه دار)) په لاس کې وې. دپیسو حواله اوداجناسو ذخیرومصرف دپادشاه دفرمانونوپه اساس اجرا کیدې. دپادشاه لوی خزانه داران، اکثره وختونه خواجه ګان وو . داحمدشاه اوتیمورشاه دسلطنت په موده کې داودنواب دوست یوسف علي، الطفات خان دلوی خزانه دار وظیفه اجرا کوله. دمالیې په دفترونو کې مهم رول، دهندي سوداګرانواوسود خورو په غاړه و. (پدې باره کې به وروسته په تفصیل سره خبرې وشي) .دسکوضربخانې ددولت په ټولومهمو ښارونو،لکه کابل ، پېښور، کندهار، هرات، اټک،ملتان، لاهور ، دیره اسمعیل خان ، دیره غازیخان،امباله (سرهند)، ناله ، دیره فتح خان، کشمیراوپه سلسله نوروښارونو کې واقع وې(۳۱) .

---

۳۰- حسین علی، زینت تاریخها ، ۹ پاڼه،محمدامین مجمل التواریخ،ص ۱۵۵، فیض محمد،سراج التواریخ ،لومړی ټوک ۳۶ ،م غبار احمد شاه بابای افغان،ص ۱۱۷

۳۱- سکې ددراني بادشا هانوپه نوم سره په بهاکارا، مراداباد، بهاول پوراومشهد کې هم ضربیدلې. په ۱۱۷۰ هجري کې دروهلیکند،نواب اودپټیالي راجه ، هم د ښتون بادشاه احمدشاه په نوم سکې وهلې . کله چې احمدشاه دمغلو پایتخت دهلي ونیو، هلته هم داحمدشاه په نوم دسکې وهل شروع شول.دلچسپه داده چې په ۱۱۹۸ ه(۱۷۸۴)

دد راني شاهانو طلايي سکې دستندارت له مخې دمغلانو سکوته نږدې وي (۳۲) څنګه چې دولتي، خزانه د شاهي خزانې څخه بېله نه وه، نو په دې اساس هغه عايدات چې خزانې ته راتلل باد شاه کولای شول د هغو څخه په هره اندازه چې زړه ئې وغواړي بې له کومې ممانعته راو باسي او يا د هغوی د انتقال او امر صادر کړي. حتی لا په خپل وخت کې نظا م ا لملك (۳۳) ، ليکلي چې د رسم ورواج له مخې پادشاهانو کوشش کاوه چې دخزانو زياته برخه يوطرف ته گوښه کړي ، تر څو د هغې نه د نها يي ضرورت په وخت کې استفاده وکړی (۳۴) په د ولتي ادارو کې «د يوان انشاء »

---

(۳۲) د دراني شاهانو طلايي سکې (۱۷۰) گرانه وزن درلود . گران دوزن يو واحد دی چې ۰٫۰٦۲ گرامه وزن لري، (نقره يي سکو تقريباً (۱۸۰) گرانه وزن دراود . د تيمورشاه سکې چې په کابل کې ضربيدلې تر ټولو په وزن زياتې وې. د تيمورشاه، شاه زمان، شجاع او محمود روپۍ چې دافغانستان په نورو ښارونو کې ايستل کيدې ، په متوسط صورت ۱۷۷ گرانه وې. هغه سکې چې په ديره جا ت کې وهل کيد ې، ددوی وزن (۱٦۵) گرانه و . پښتنو پادشاهانو هم دايراني او هندوستاني بادشاهانو په شان د سکو په مخ و نو باندې فارسي بيتونه ليکل . دغه لاندې اثر ته مرا جعه وکړې :

(Lougworth Dames,the codns of the Durranis, P. 332—335).

۳۳ـ «سياست نامه» د ۱۱ پيړی وزير نظام الملك د اداري په باره کې ليکل شوی ده ، د پرو فيسور ب.ن زخادر ترجمه ، مسکو ـ لينين گراد، ۱۹۴۹، ص ۲۳۰ .

۳۴ «د مثال په توگه، د الفنستون اثر و گوری» (An account..., 526 ) د هرات حکمران ميرزا کامران په هکله ويل کيږي ، چې ده د ښار کوتوال ته امر کړی و، چې

یادار لانشاء خاص اوچت مقام درلود. دغه دفتر، شاهي فرمانونه او مکتوبونه صادرول. ددې دفتر په سر کې د بادشاه خاص سکرتران «منشي باشيان» یا «شاهي منشیان» ولاړ وو، چې معمولاً ددې منشیانو شمیر دوو کسو ته رسیده. داحمد شاه په وخت کې سعادت خان مدوزی او میرزا شادی خان، دشاهي منشیانو وظیفه اجرا کوله. دشاه زمان په دوره کې محمد شریف خان او میرزا محمد علی خان (۳۵) د «دیوان انشاء» په راس کې ولاړو.

دشاهي منشیانو لاس لاندې څو نفرو دټیټو رتبو منشیانو او کاتبانو هم کار کاوه. د «دیوان انشاء» له خوا نه حقوقي اسناد، اداري استعلامونه، هدایات، مقرري، د رتبو او القابو دلوړیدو متعلق سندونه ورکول کیدل. هغه فرمانونه چې د بادشاه په امضاء سره کوم ځای ته استول کیده، په هغو باندې دوزیر مهر او د هغوما مور ینو امضاوې هم لګیدلې، د کوم دفتر سره چې فرمان اړه اړله. په ۱۷۵۹ کال کې د احمد شاه یو منشي محمود الحسیني ته د منشي توب نه پرته دا کار هم ورکړ شو، چې ددربار دمؤرخ وظیفه اجرا کړي.

په دولت کې بل مهم دفتر، د «اطلاعاتو اداره» وه، چې د هغه اداري امر ته «خر کارباشي» ویل کیده. خر کارباشي نه یوازې داطلاعاتو اداري کارونه کول، بلکه دپستي کار هم دده په لاس کې و (۳۶). هغه شاهي فرمانونه او مکتوبونه چې دخر کارباشي

35— J.P. ferrier, history of Afghans, P. 211—212;

فیض محمد، سراج التواریخ، لومړی ټوک، ص ۵۵، ۳۰.

۳۶— د مخابراتو او جاسوسي شبکې په یوه دا یره کې یو ځای کول نه یوازې په افغانستان کې کیده، بلکه دختیځ په نورو هیوادونو کې هم دې کار سابقه اړله. دغه موضوع

اداري له خوا استول كيدل ؛ د هغوانتقال لپاره مخصوص سريع سير كسان چي هغوى ته چپاري ويل كيدل موجود وو (۳۷) څنګه چې دغه دفتر خاص اهميت درلود، نولدې كبله پادشاه په خپله د «اطلاعاتوا دارې » مراقبت اوڅار كاوه. تاريخى اسناد داهم وايي چې ددولت په ټولو برخو خصوصاً مفتوحه ولايتونو كې خلق دجاسوسانو په وسيله په ترس او ويره كې ساتل كيدل (۳۸) .

م .غبار ،ليكلى چې احمدشاه په ټولو هغو اسرارو باندې خبرو ، چې دده دد ولت لويو مامورينو په پټه په هغه كى لاس درلود ، همداسبب و، چې دوي يې په پرلپسي ويره كې ساتل (۳۹) .

دخركار باشي لاس لاندې «ضبط بيګي» «اونسقچي باشي » كار كاوه . «ضبط باشي » دما لونو دضبطولو اداري په سر كې ولاړه. او « نسقچي باشي »ددولتى مجرمينو ، داعدام په باره كى شاهى فرمانونه صادرول. دنسقچي باشي عمله مجبوره وه ، چې شاهى فرمانونه دمجرمينو په حصه كى تطبيق كړي . داحمدشاه سره د پوځ كشيو په وخت كې د نسقچي باشانو په رول باندې په وروسته خبرې وكړو .

په مركز اوولايتونو كې قاضيان دپادشاه له خوا اكثره ددرباري امام په معرفى سره مقرريدل .

دپايتخت قاضى ته قاضى القضات ويل كيده. قاضى القضات ۸ سرستيالان او كاتبان ارل (۴۰) .
دا مپراتورى په ټولو ښارونو كى د ټيټي رتبى قاضيان موجود وو. په ولاياتو

---

37— (Samin, “Ahmad shah Abdali, and theIndian Wazir I Marulmulk (1756—1757) Contributed by wiliam Irvine Indian antigury” Vol. 36, (1907), P. 13.

اومحلو نو کی دقاضیانو مرستیالانو کا رونه کول . فریر لیکی ، چی د احمد شاه دانتخاب په وخت کی داسی فیصله و شوه ، چې دټول دولت لپاره دقوا نینو متحده مجموعه ترتیب کړی ( ۴۱ ) چې هغه په تباپلو کې دعرف په ځای استعمال کړي که دا کار تر سره شوی وای ، نه یوازی به ئی دمرکزي دستگاه حیثیت لوړ کړی وای ، بلکه د پښتنوفیودالی روابطو تحکیم اوتشکل لپاره به ئی هم مرسته کړی وای. ترکومه پوری چې معلومه ده احمدشاه داسی قانون اعلان کړ ، چی د هغه له مخې چانه شوای کولاي خپل غلام ووژنی .

داحمد شاه په وخت کی داقانون جوړشو ، چې یوازې زامن دپلارونو میرا ث خواره بلل کیدای شی. په خوا لدینه زیاتره لونه میراث خورې گڼل کیدی (۴۲) .

درانی شاهانو کوشش کاوه چې دوی ته ورکړ شوی حیثیت دنو یو قوانینو په جوړ ولو سره لاتینگ کړی د وی غوښتل چې دخپلو خلکو په منځ کې دعرف او قصاص مسئلې که پیځی له منځه وړلای نه شی ،نواقلاً د و مره خوو کړ ای شی چې هغه محدود ې کړی ،ولی پدې لاره کې ددوی ټولو کوششو نو کو مه گټه ونکړه (۴۳) .

شریعت او د هغه مقررات دپښتنو قبیلوی ژوند په همق کې اگر چې ورو ورو نفوذ کاو، ولې د دې سره سره نه یوازې د درانی شاهانو په دوره کې، بلکه را پدې خوا وختونو کې هم هلته چې قبیلوی ژوند روان و، عرف او عنعنې کلکه حکمرانی کوله . د خلکو واړه کارونه په جرگوباندې فیصله کیدل . هغه کارونه چې لږ مهم وو، دملکانو یادقبیلو دخانانو په فیصلو حلیدل . چیرته چې دخانانو قدرت زیات و، هلته یې مجرمین

---

41— J.P. ferrier, history of the Afghans P, 68;

م. گ : اسلانوف ماته وویل چې لږ مه وده دمخه پېښور کې په پښتو با ندی

په نقدي جريمو محکومول. داسې رواج هم موجود ؤ چې د جريمې په مقابل کې يې نجلۍ ورکړه اخيستې. د غلام قتل چورا و زخم په مقابل کې ټاکلي نرخونه موجود وو (۴۴)

اشرافو او بانفوذ کسانو د خپلو مخالفينو سره، په خپله معامله کوله، بې له دې چې « جرګې » ته مراجعه وکړي. د يوسفزيو په قبيله کې د « بدل » رواج موجود و « بدل » دا معنی لرله، چې د ضرر او تاوان په مقابل کې دښمن ته حتماً ضرر او تاوان ورسوي که فرضاً تاوان ډير ناچيزه هم وي (۴۵) .

په ښارونو کې د قاضيانو محکمې موجودې وې د پېښور سيمې، قبايلو (مومندو، خليلو او نورو قبايلو کې) چې هلته د پادشاه قدرت زيات ؤ د لويو جرايمو تحقيق د قاضي او يا د مربوط ولايت د حاکم له خوا کيده، البته دې کار د قانون بڼه نه درلوده، بلکه يوه استثناوه . (۴۶) قاضي خپلې فيصلې د شريعت او هغو قوانينو په اساس کولې چې د پادشاه له خوا اعلان شوې وې. د اعدام حکم يوازې په پادشاه او د مربوطه ولايت حکمرانانو پورې اړه لرله. هغه څوک چې په مرګ محکوميدل، هغوی سره ډيره بې رحمه رويه کيدله . په مرګ محکومين يا په مست هاتي وژل کيدل، يا به يې اسونه ورباندې څغلول، او يا به يې دوه محکومين شا په شا سره وتړل، لاسونه به يې هم بند و، نو روسته به يې اوبو ته ورغورځول کړل. د دې نه علاوه د محکومينو وژلو لپاره زيات ډولونه موجود و (۴۷). شرعي

---

44— H.W. Bellow, Jou rnal of political Mission, to Afghanistan in 1857, under major (nowcolonel) Lumsdeniwith on account of the countryand people, London, 1862, P. 37; M. Elphinstone, An account ..., P. 166— 170.

45— H.W. Bellew, Ageneral report on the yus ufzais in six chapters, with a map, Lahore, 1864, P. 211—212.

46—M. Elphinstone, An account..., P. 259, 522.

احکام یوازي په مسلمانانو باندې تطبیقیدل. دهندوانو جزایی کارونه، دهندوانو قاضیانو له خوا فیصله کیدل.

د پښتنو په قبلوی ژوند کې روحانیون د لومړي محل لپاره، د یو متشکل گروپ په صورت میدان ته را ووتل. په پښتنی ټولنه کې روحا نیون نه یوازې د هرډول تکلیف څخه معاف وو، بلکه دوی نې بدل (قصاص) له رسم ورواج څخه هم خارج وو. د درانی امپراتوری تشکیل نه وروسته، د روحانیو نو نمایندگان یوازې د پښتنو په سیمو نه، بلکه د امپراتوری په ټولو منطقو کې د ټولنې د ممتاز قشر بڼه غوره کړه.

دوی د دولتي مالیاتو، عسکری خدمت او نورا جتماعی تکلیفونو څخه وتلي وو روحانیت پښتني ټولنې ته قاضیان تربیه کول، او دولتي خیزیه کارونه هم د دوی په غاړه وو. د دې نه پرته د هیواد ټولې تعلیمي موسسې، د دوی له خوا اداره کیدلې. پادشاه د روحانیانو د یرو نما یندګانو ته ځمکې او مستمري معاشونه ورکول، د مثال په ډول، احمدشاه ملاسیدحاجی ته د کوزړ کلی په جایگیر کې ورکړ. ملا یانو د تیمور شاه د سلطنت په موده کې ډ یرې ځمکې لاس ته کړې. ملا قاضی فیض الله دولت شاهي د تیمورشاه د راني نږدي همکار اوله بلې خوا په پادشاهي زیات تاثیر درلود.

شاه زمان خپل ځان د شیخ احمد سرهندي ' له پیروانو څخه باله. شاه زمان د دغه شیخ بازماندګانو ته د کابل دریاب په کیڼه غاړه داوختا (؟) په سیمه کې ز ښتې ډیرې ځمکې بخشش کړې (۴۸). د مشهور صوفی صابرشاه ورور باقرشاه ته هر کال د دولت له خزانې څخه د مستمري معاش په نوم پنځه زره روپۍ ورکول کیدې. دا باید هیر نشي چې صابرشاه د احمدشاه په انتخاب کې لوی رول لوبولی و.

---

48— H. G. Raverty,notes on Afghanistan part of Baluchistan; geeghraphical, Ethnograp hical, and historical, Excersie

ددې‌نه‌پرته روحانیونو ته دپلاپانو له‌خوا لوی لوی سوغاتونه ورکیده په ودونو ، جنازو او نورو مراسمو کې هم بې‌برخې نه‌وو (۴۹) په کلیو کې بزگرانو روحانیونو ته بې‌مزدوری ځمکې کرلې اوریبلې . دا هم سخته ده که‌سړی تش په دې قناعت وکړي چې‌بزگرانو یوازې په‌خپله‌رضا سره ددوی کارونه کول . هغه ځمکې چې دشیخانو او صوفیانو وې ، زیاتره وختونه ددوي شاگردانو ، مریدانو بې‌پیسو کرلې .

دروحانیونو نفوذ اوقدرت ددرانيشاهانو دسلطنت په‌وروستیو وختونو کې لاپسې زیات شو . داحمدشاه سلطنت په‌دوره کې دروحانیونو اقتصادي قوت چندان زیات نه‌وو . دې‌وضعې مرکزي دستگاه ته‌دازمینه برابروله ، چې احمدشاه دروحانیونو په‌فیصلوکې ترتولو زیات خپله اراده ورشامله کړي . احمدشاه‌چې دافغانستان ملایانو ته کومې فتوې صادرولې . هغه‌تولې دشریعت په احکامو بناوې ( ۵۰ ) دتیمورشاه دسلطنت په‌دوره کې دروحانیونو نفوذ اوقوت په فوق العاده صورت پرمخ ولاړ . داځکه‌چې تیمورشاه دروحانیونو نمایندگانو ته په دولتي اورگان کې لوی اداري مقامونه ورکړل . تیمورشاه غوښتلې په‌روحانیونو باندې خپل ځان تکیه کړي اوهم دروحانیونو اعتبار ، نفوذ اوقدرت د پښتنو قبایلو خانانو په‌مقابل کې استعمال کړي .

دملایانو، عالمانو قوت اوثروت دتیمورشاه دجانشینانو په‌وخت کې لا پسې زیات شو . د ۱۹ پېړۍ په‌اوایلو کې په هیواد کې دځمکو زیاته برخه هم په روحانیونوپورې وتړل شوه (۵۱) .

---

همدغه دروحانیونو حمایه‌وه، چې شاه‌زمان یې دافغانستان د تاج و تخت

خاوند کړ (۵۲) . لدې نه‌چې تیرشو ، همدغه دروحانیونو حمایه‌وه ، چې‌په اول

کې شاه شجاع دمحمود په‌مقابل کې بریالی شو. دمحمود حامیان قزلباشان او

شعیه ګان وو . داهم باید ووایوچې‌پدې مبارزه کې دشاه شجاع په‌لوری په ختیځه

پښتونخوا کې هغه قبایل (کوزدرانیان) هم راتیرشول ، په کومو کې‌چې دملایانو

نفوذ زیات وو(۵۳).

---

۵۲ ـ عبدالکریم بخاري ، افغان و کابل ، ص ، ۴ .

53— M. Elphinstone, An account..., P. 326.

# دریم فصل

## دربار، پایتخت او لوی ښارونه

د پښتنو پادشاهانو دربارونو د لویو مؤسسو په توګه ځانته بیل مقام درلود. په دې دربارونو کې غټ او مهتر منصبونه، لکه په نورو دولتي ارګانونو کې په میراثي توګه، د درانیانو د قبیلې خانانو ته ورکړ شوي وو. درباریانو ته د خپلو ځاګاو دربارې دندو نه پرته کله کله په عسکري او مسلکي دفترونو کې هم بیلې بیلې وظیفې ورسپارل کیدې (۱) د دې لپاره چې د نورو دولتي مامورینو سره د دربار یانو توپیر شوی وي، دوی ته یونیفورم ورکول کیده. په دربارونو کې سندرغاړي، ګډیدونکي سازچیان هم موجود وو، چې پادشاه به یې ان د لښکر کښیو په وخت کې هم بدرګه

ډیره لوړه شوډلې ده. د ۱۸۰۹ کال په مارچ کې یې الفنستون خپل حضورته ومانه، دسلا قات پهوخت کې باداشاه په طلایي تخت با ندې ناست و. تخت په ږویو کې پټ و، اوروبې هم په مرغارو جوړې شوې وې. دشاهشجاع توره او (تکه) ددهدجامو اوتاج پشان په الماسو سینګا رشوې وې. په یوه وښې با ندې چې د ځنګلې نه پورته یې تړ لې و، دنوروالماسو په منځ کې مشهور «کوه نور» هم ځلیده(۲).

درباري لوړ ومراسمو، مغلقو دپلو ماتیکی ادا واوبې سارومېلمستیاوو پخپله د پښتنو بادشا هانو قوت لیدېنکو ته ډیر ښه انځور اوه. احمدشاه له شاهې دبد بې په ړنګی کې خوداني (بنګې) ټومبلې، په هغوی کې قیمتي الماس لګیدلي وو.

تیمورشاه دراني په خاصوتشر یفاتي ورځوکې په څلورکونجه بخملی خولی کې خلکوته راوت (۳). دراني بادشا هانو غوښتل، چې نوروته نه یوا زې خپل قو ت او ثروت وښېي، بلکه تماشا کو ونکو ته فرهنګی او کلتوري لوړتیا هم جوته کړي. دهمدی دلیل له مخې یې علم اوادب ته خپله مینه ښوو له. احمدشاه هروخت ډوډی ته عالمان اوپوهان رابلل، اودوی سره یې په مذهبي او علمی موضوع ګانو باندې خبرې اترې کو لې (۴).

درسم اورواج له مخې ددولت رئیس باید داد پیانوسلاتړ کړی وای. په ۱۷۶۲

---

2— M. Elphinstone, An account of the Kingdom of Kabul, and its dependencies in Persia, Tartary and India, comprising a view of the Afghan nation and a history of the Dooranee monerch, London, 1815, P. 15.

3— G. forster, A Journey from Bengal to England, the throught northern part of India, Kashamire, Afghanistan and Persia and into Russia by the caspiansea Vol. II

کال کې احمدشاه درانی نظام الدین سیالکوټی، ته په دې وجه جاګیرورکړ، اوهم یې په کشمیرکې دقضایی چارواکو «امین» وټاکه، چې نوموړي شا عرد احمدشاه لوی کارونه په شعرکې بیا ن کړي ل، او بیا یې د هغو شعرونو خخه شهنامه ترتیب کړې وه .

ددرانی بادشاهانو په دربار کې چې کوم تشریفات مراعات کیدل، هغه ترزیاتې اندازې پورې داحمد شاه درانی اونادر افشارد دربارونوتشریفاتوته ورته وو.
ددرباري چارو امرته «ایشیق اغاسی» ویل کیده. د«ایشیق اغاسی» وظیفه او کارونه بالکل ددربار د وزیر پشان وو. دغه چوکی په میراثی ډول د پوپلزایي قبیلې خانانو ته ورکول کیده. د هوخ کشیو په وخت کې د«ایشیق اغاسی» کارونه، «اردو باشی» ترسره کول. «اردو باشی» په دربار کې دایشیق اغاسی نه وروسته دوهم سړی و. هغه کسان چې په دربار کې یې دنوکرانو په صفت وظیفه لرله، ټول د «اردوباشی» دامر لاندې وو. دد ربارلپاره دنوکرانو اوبیره دارانوټاکل او ګمارل هم د «اردو باشی» تر واک لاندې وو.

په دربار کې نورلوی پستونه زمونږ دمعلوماتو له مخې په لاندې ډول وو:
«میرا خور با شی» «لوی مهتر» «عرض بیګی» دبادشاه لوی راپور چی داحمد شاه درانی په وخت کې دغه چوکی برخور دارخان (٦)، ته ورکړ شوې وه .
«پیش خدمت باشی» «پیش خانه چی» «فراش باشی» ــ د شاهی نقلیې امر «جهرچی باشی» «مهمان دار باشی» د پروتو کول دفتر اګرچې دسفیرانو اومیلمنو استقبال اوپذیرایي دده په غاړه وه. په دې دفترونو کې نسبتاً مهمه شعبه دمیراخورباشی

---

(٥) غبار، احمد شاه بابای افغان، ۱۲۲ــ۱۲۳ .

... (Samin), "Ahmadshah Abdali, and the India wasir

دفترو . دغه شعبه په میراثی توګه ساکز یوته ورکړ شوې وه ، چې د شا هی تولو اسونو اونورو باروړ ونکو حیوا ناتوالکه : اوښانو ، کچرو ، پیلانو دوښو اوددوی دڅړ ځایونوڅارنه کوله . دمیرا خورباشی ترلاس لاندې یوخاص دفتر چې هغه ته کماندو ویل کیده واقع و. ددې نه پرته دمېرا خور باشی امرپه ډیرو مامورینو اونو کرانو هم چلېده . دغه دفتر د خپل کارله مخه دپوځ او «دیوان اعلی » سره ټینګه رابطه درله.

دعرض بیګی «اوی راپور چی» وظیفه داوه چې بادشاه درا رسیدلو شکا یتونو او عریضو څخه خبر کړي اوهم دهغو دعرضونو اوشکا یتونو ځواب ورکړي .

«پیش خدمت باشی » ددرباری نو کرانوامرو اوهروخت دبادشاه پهحضور کې ولاړو. ددربارد اخلی برخو دسینګار کار پیش خانه چې ته سپارل شوی و. ددې نه پرته ددبار لپاره ضروري شیانو پیدا کول هم دده وظیفه وه. دپوځ کشی په وخت دشاهی نقلیې کنترول هم «پیش خدمت باشی» کاوه .

«جهرچی باشی» دبادشاه فرمانونه خلکو، پوځ اودولتی مامورینو ته اعلانول. دعرض بیګی وظیفه پوهلزایانوته ورکړ شوې وه ددې نه علاوه یوه سلسله نورد فترونه هم وو، لکه «صندوق دار باشی» «ناظر کارخانۀ طعام»اوپه هغو ځایو کې چې بادشاه ښکار کاوه ، هغوی خپل امرین لرل . دښکار په ټولو اقسامو کې دبازانو ښکا رته خاص ارزښت ورکول کیده . په دربار کې طبیبان هم موجود وو، چې مشرطبیب ته «حکیم باشی » ویل کیده بادشاه «مصاحب باشی» یا «ندیم خاصه» هم د رلود (۷) . دبادشاه دحرم کارونه لوی خواجه ته سپارل شوي وو، چې هغه ته « خواجه سرا باشی» ویل کیده دلوی خواجه لاندې نورو خواجه ګانو هم کارونه کول .

په دربار کې مهمې وظیفې درانی خانانوته ورکړه شوې و ي . تش په ځینو

مواردو کې دنورو قبیلو خانانو ، دمثال په ډول محمد زا یا نو ته لو یې چوکی و رکول کیدې (۸) .

ددې ․ره سره په دربارکی ډیرې زیا تې و ړې چوکې هندوا نو ، ایرا نیا نو (قزلباشانو) ته‌هم ورکړ شوې‌وې. قزلباشان کله کله لوېوچوکیو ته‌هم رسیدل. دمثال په توگه میرعبد الحسن‌خان چې‌نوکری‌یې دساده عسکر څخه‌شروع کړه، او وروسته د«صندوق داربا‌شی» مقا م ته‌ورسید،اوڅه موده وروسته«قلی‌راغاسی»وټاکل شو. با لا خره د شاه شجاع د سلطنت په دوره کې د پېښور دحکمران په حیث مقررشو. دپښتنو بادشا هانو دربارونوته‌ان دهندوستان‌اوایران څخه‌اشراف‌اوفیوډالان دنوکری‌لپاره راتلل. داحمدشاه په‌دربارکې دمثال په توگه سونږ دنادر افشارنږدې خپل نواب‌اودده شجاع الدوله لیدلای شو(۹) .

احمدشاه د راني د سطنت په د وره کې د افغا نستا ن پا یتخت کند ها ر، چې رسمی‌نوم‌یې احمد شاهی‌و. ددې‌ښارتاریخ داسې‌بیانیږي:«کله‌چې‌نادرافشارد کندهار زوړ ښاریا لکل وران کړ (۱۰) ،نوایرانی فاتح زاړه ښارته نږدې نوی ښارا باد کړ او هغه ته‌یې‌نا درا باد نوم‌ورکړ ، نادراباد دښېلو اوبوله پلوه ښه‌مو قعیت نه‌دراود،

---

8— M. Elphinstane, An account..., P. 402; H. G. Raverty, nates on Afghanistan and part of Baluchistan; geagraphical, ethnographical and historical, Extvacted from the voritings og little known Afghanistan and Jajkhistan, geographers, and genealogists, London 1880, P. 217.

(۹) دروسیې خارجی سیاست ارشیف ف . «د پارس سره دروسیې روابط»،۱۷۵۳ کال ، د ۳۰ ، ۱۱۱ ، ۱۱۵ مخونه «ددې‌موضوع لپاره‌دروسیې خارجی‌سیاست‌ارشیف وگوری».

۱۰— دروسیې خارجی سیاست‌ارشیف ف . «د پارس‌سره«د روسیې روابط »، ۱۷۸۲—

ځکه چې څنګ سره یې د کړکوجبه زاره ځمکې پرتې وې او هدې احاطه نادرآباد دروغتیا له پلوه په زړه پورې نه وه، له همدې کبله ګڼله چې احمدشاه درانی په ۱۷۶۱ کال کې د هندوستان څخه فاتح راګرځي، نو دا فیصله کوي چې نوی پایتخت اباد کړي.»

احمدشاه ته دنوي ښارلپاره پو پلزا یانو ځمکه ور کړه (۱۱). دنوي ښار لپاره احمدشاه په ۱۷۶۱ کال کې پلان ترتیب کړ، او دغه پلان عزیز الدین «پو پلزایی» په خپل کتاب «تیمورشاه درانی» کې رانقل کړی دی (۱۲). هغه سیلا نیان چې د ۱۸ م پیړۍ په ورو ستی برخه او د ۱۹ پیړۍ په لومړ یو کلو کې کندهار ته را غلي دي ، هم مونږ ته د دی پلان په باره کې معلومات را کوي .

د کندهار ښار د پلان جوړولو په وخت کې پلان جوړونکو د هرات ښار نقشه په نظر کې نیولې وه .د کندهار نوی ښار په شپږو کلونو کې جوړ شو. په دې ترتیب سره ویلای شو چې د کندهار نوی ښار د احمدشاه د ژوند په وروستیو وختونو کې بشپړ شو .نوی ښار قایم الزاویه شکل درلود ،او چاپیره یې د ختو دیوال راتاو شوی و، چې

---

۱۱ --فیض محمد ، سراج التواریخ ، لومړی ټوک ،۲۶ مخ.

۱۲ --عزیز الدین پوپلزایی تیمور شاه درانی . الفنستون لیکی: چې د قندهار د ښار

اوږدوالی یې ۵ ره کیلو متره کېده (۱۳). د کندهار د نوي ښار د یوال (چې د شلمې پېړۍ په لومړیو وختو کې یې اندازه اخستل شوې ده)، اته متره لوړ والی، د د یوالونو لاندنیو برخو شپږ متره او د سر برخو سوربې ۲ رېمتره و (۱۴). په هر د یوال کې د کوتوله برجونو نه پرته نور ۱۷ برجونه موجود وو. نوی ښار شپږ دروازې درلودې، د ښار شاوخوا خندق وروسته بارکزیو کیندلی و، احمدشاه نه غوښتل چې خپل نوی ښار په خندق سره وتړي اوږدې باره کې یې په غرور سره ویل: چې د کندهار خندق به د ډیلي خندق ته ورته وي (۱۵). د ښار شمالي برخې په سرکز کې شاهي قصر او ارګ پراته وو. احمدشاه خپل نوی ښار ته داسې اوبه راوستلې: د ارغنداب سیند څخه یې دوې لوېې ویالې راوړته کړې وې د غه دوې لویې ویالې په ښار کې په ورووړو لښتیو ویشل شوې وې، چې تقریباً د ښار ټولو کوڅو ته یې اوبه رسولې. په ۱۷۸۳ کال کې فاستر کندهار ته راغلې دی او داسې لیکي: «د کندهار نوی ښار

---

۱۳ د ج. فاستر او چ میسون په قول د کندهار ښار د یوالونو چار چاپېره اوږد والی سه میله کېده د فاستر او میسون کتابونه وګورئ:

G. forzter, A Journey from Bengal to England ..., Vol. II, P. 102; Chales masson; Narrative of various Journey in Balco chistan, 1838, Vol. II, London, 1842, P. 78;

مهنلال لیکي، چې د کندهار د نوي ښار د یوالونو اوږدوالی ۹ زره قدمه کېده، د مهنلال کتاب ته مراجعه وکړئ:

Mohanlal Trvels in the Panjab, Afghanistan, Turkistan to Balkh Bukhara and Herat, London, 1846, P. 302;

مهنلال اصلاً کشمیری دی، ډېر کالونه یې د انګریزانو سره نوکري کړې ده، د ۱۹ پېړۍ په ۳۰ م کالونو کې افغانستان ته څو ځلې راغلی دی.

چې د هرات ښارڅخه یې اندازه لویه ده، دخلکو څخه ډک اوپه ښه جمع وجوش کې
دی (١٦) مهنلال لیکی : «چې د کندهار په ارګ کې دسدوزیانو په عصر کې
ډیر مجلل تعمیرونه جوړشوي وو ، ولې کله چې دی کندهارته راغلی. داوخت دغه
ښکلی تعمیرونه مخ په خرابیدوو » (١٧) دد رانیانو سردارانو تقریباً ټولو په دې
نوي ښار کې کورونه لرل . او دغه کورونه زیاتره ښکلی مجلل و
دښار په مرکز کې هلته چې دوواو یو سرکونو سره قطع کول په هغه ځای
کې یوڅو کوچنی بازارونه ، جوماتونه کاروان سرایونه او یولوی ښکلی بازاردچارسو
په نوم موجود وو .
دکندهار دنوی ښاردیوالو نوپه ودانولو کې له هندي او ایرانی وستا کارانو
څخه کار اخستل کیده او ددوی په سربانډې دسلطان محمد خان درانی په وینا
هندی مهندس ولاړو . دښار په ژر جوړولو کې په زرګونو هندي بندیانو کار کاوه،
چې دهانی پټ په ماته کې دښتنو لاس ته ورغلی وو (١٨) .دکندهارد نوي
ښارودانو ونکی چې دهندوستان دامپراتوری دختیځو ولایتونوڅخه هلته راوستل
شوي وو ، دوی په یوه مخصوصه منطقه کې چې دمعمارانو کوڅه و رته ویل
کیده ، او سیدل . دښار دغی برخې خپل نوم ترننه ورځې پوری ساتلی دي (١٩).
دګر یسانف په وینا چې دشاه زمان دسلطنت په لومړیو کلونو کې کندهارته راغلی
دی وایی «چې دغه ښار داوخت دهیواد پایتخت نه وو .ولی ددې سره سره په کندهار

---

16— G. forster, A Journey from Bengal to England..., Vol. II, P. 120.

17— Mohanlal, Travelsin the Panjab..., P. 303.

کې دشپېتو زرو څخه تراتیا وزرو پورې اوسېدونکي او سېدل (۲۰).

د کندهار دنوي ښار دجوړېدو په وخت کې ددرانیانوقبیلې هرې پښې نورزیو، اڅکزیو، پوپلزیو، الکوزیو، بارکزیو اونوروڅانګو لپاره ځانته کوڅې جوړې کړې وې.

دمومندو، ختکو، غلجیانو، یوسفزیو او نورو تېروتو لګیو لپاره هم ځانته برخې ورکړای شوې وې. دشاهي ماڼۍ سره څنګ ته شاهي مریان یا ګاردشاهي چې دسردار محمد، عطامحمد، محسن خان، سرفراز خان او نورو خانانو تر قوما ندانې لاندې وو، اوسېدل. دښار په لویدیځه برخه کې بې اندازې زیاتې کار خانې ورکشاپونه اود ذخیرو کوټې موجودې وې، چې کارګران، کسب ګران، ترکانان، پښان، وسله جوړونکي او نور پکې او سېدل. دښار په جنوبي برخه کې جبه خانه توپخانه او همدا ډول دنسقچیانو، تواګیو ته ځای ورکړ شوی وو. همدلته داسونو، کچرو طبیلې هم واقع وې. دشاهي پیلانو پنډېدو لپاره دښار په جنوب لویدیځه برخه کې ځای ټاکل شوی و (۲۱). دښارجنوبي برخې په مرکز کې شاهي دفتر خانه واقع وه، او شمالي سیمه کې دیوان اعلی پروت و.

ددې پورتنی تفصیل څخه داښکاري چې د کندهارښار ترهرڅه دمخه نظامي اډه اولوي عسکري کمپ و، چې په هغه کې د احمدشاه دپوځ جبه خانه، دوسلو

---

۲۰- ددیوم کوپیکواثر وګوری: «په ۱۷۹۲ کال کې دیلای لوماته، دمیترو پالیت ګرسیانف، سیاحت ۳۹۳، مخ.

ذخیرې د پوځ متعلق ور کشا پونه د هغوی ماسټران او کسب ګران ځای کړشوي و. نوی مر کز باید د امپراتور ی د «وحدت سمبول» او سنګر په صفت خپل رول لوبولای وای. نوی مرکز د احمدشاه درانی تر قیادت لاند ې و ، او د ټولو پښتنی قبیلو نمایند ګی یې کوله .

د کندهار په نوی مر کز کې د ټولو پښتنو قبایلو راغونډولو نه د احمدشاه مقصد داو ، چې هغوی د تل لپاره تر خپل لاس لاند ې وساتي ، او په دې توګه سره و کولای شی د پښتنو زورورو خانانو د شورشونو مخنیوي و کړي . د د ې سره سره دومره با ید وویل شی چې د احمدشاه د ې فکر چندان ګټه ونکړه . د ا ځکه چې د نو ې پایتخت خاوندان په واقعیت کې درانیان شول . بله دا چې د پایتخت شاوخوا کلي او جایدادونه هم د درانیانو وو . همدا وجه وه چې تیمورشاه د پادشاه کیدونه وروسته لاس په لاس پایتخت کابل ته نقل کړ . د کابل سنګرونه د نادرافشار د پوځ کشیو په وخت کې ډیر زیانمن شوی وو (۲۲). ولی دغه استحکامات د احمدشاه په امر د جها ن خا ن پوپلزي تر څارنی لاندې په ۱۷۵۳ کال کې له سره جوړ شوي وو .

دغه ټول استحکامات د تیمورشاه لاس ته ور غلل . د کابل ښا ر نه نسبتاً د ر ګی غوندې خندق راخرخیدلی و . د کابل په ارګ کې د تیمورشاه لپاره نوې ماڼۍ ودانه شوه (۲۳) .

---

۲۲ غلام حسین مقتدر تاریخ نظامی ایران ، مخ ۲۰۹ .

23— P. E. Caspani,Les murs de Kabul ("Afg hanistan", 1946, No. 2), P. 31;

دا باید وویل شی چې د دیوالونو محکموالی چندان ز یا ت نه و . شپیته کا له وروسته هغه وخت چې جی برنس کابل ته راغی ، نوله کی : چې د ښار دیوالونه تقر یباً

په ۱۷۸۳ کال کې ج . فاسټر لیکي : چې د کابل ښار دیوالونه چارچاپېر اندازه یونیم میل و ، په دې حساب سره د کندهار ښار د کابل څخه ډېر ستر و (۲۴) د کابل ښار په جګه برخه کې بالا حصار پروت و ، چې په دوو برخو یعنې په پاسنی او لاندنۍ برخو باندې ویشل کېده . د ۱۹ پېړۍ په اوایلو کې پورتنۍ کوټ باندې غبرګ دیوال ګرځېدلی و . د بالا حصار د دیوالونو لوړوالی ۳۵ فیټه (۵ر۱۰ متره) و (۲۵) .

بالاحصار د باد شاه استوګنځی ، او د هېواد اداري او سیاسي مرکز بلل کېده ، د پادشاه قصر د بالا حصار په لاندنۍ برخه کې د رسم ګذشت میدان کې واقع و . همدلته شاهي حرم سرای هم و ، په بالاحصار کې مهمو دولتي دفترونو ، لوړو دولتي مامورینو ، پادشاه ته نږدې کورونو او د دربارنو کرانو ته ځای ورکړ شوی و . د بالا حصار پاسنۍ برخې نه د جېل په صفت کار اخستل کېده . په همدې پاسنی بالا حصار کې تیمور شاه ځېل ورونه او نور دوستان د بندیانو په شان ساتل (۲۶) . په بالا حصار کې د بادشاه پاورانو (محافظینو) ، د وسلې ذخېرو ، د وسلو جوړولو ورکشاپونو ، اوښانو ، اسونو او کچرو د طبیلو ځایونه هم وو . په بالاحصار کې د تیمورشاه لپاره باغونه او لوړ سالونونه آباد شول . کله چې د کندهار څخه کابل ته پایتخت

---

24— G. forster, A Journey from Bengal to England. Vol. II, P. 67—70.

25— G. T. vigne, A personal narrative of avisit to Ghuzni, Kabul and Afghanistan and residen ce at the court of dost Mohammad, London, 1840, P. 164.

26— G. forster, A Jour ney from Bengal to England..., Vol. II, P. 73; H.G. Raverty, Notes of Afghanistan. ., P. 66;

عبدالکریم بخاري، افغان و کابل ، مخ ۱۰، ۱۳ ، ۱۴ ، شهزاده محمد مصطفی ،

را نقل شو ، نو د پښتنو سردارانو خصوصاً د رانی خا نانو او د دوی نږدې کسانو هم

دلته د کورونو په آباد ولو پیل وکړ. د کابل ښخه تیمورشاه تش د دوبی د پا یتخت

په صفت کارا خیست ، ژمی یې د تول د ربار سره عموماً په جلال آباد او یا پېښور کې تیروول.

دد رباروتونه پرته پادشاه اولویو دولتی مامورینو د ښار په شاوخوا کې کورونه او

باغونه لرل. د مثال په توګه تیمورشاه کابل ته نږدې په شکر دره کې لوی باغ د

شاهی باغ په نوم سره اباد کړ . ددې علاوه تیمورشاه په هرات کې هم لوی باغ درلود

(۲۷) . د پښتنو په سیمو کې دفیودالی روابطو چټکه وده ، د پښتنو امپراتوری تشکیل

دافغانستان ښارونولپاره په زړه پورې مساعد شرایط برابر کړل . دد رانیانو امپراتوري

تشکیل نه ور وسته په لومړ یو لسو کالونو کې دښارو نو پرسخ تګ لپاره زیات

امکانات برابر شول . داځکه چې دد ې ښارونو ښخه فعاله ترانزیتی تجارتي لاره

تیریده، او هم هیواد ته د هندوستان ښخه په زرګو نو بندي کسب ګران را وستل

شول .له بلې خوانه دافغانستان په ښارونو کې فیودالا نو ډیرې پیسې لګولی ، او

داتولې دنیول شویو سیمو ښخه د ساليې ، باج او نظامی ولجې په نوم سره راوړل کیدي.(۲۸)

---

27— G. T. Vigne, A personal norrative..., P. 217; "Abostract of Captain Christies Journal"; د غه مضمو ن . و

Henry Pothinger" (Travels in Beloochistanandsind; په دې کتاب کې وګوری ،

those countries, London, 1816, Appendix), P. 145.

۲۸ ـ دد رانیانو عصر په «ماهیت کې هغه لوي ګام» وچې د پښتنو قبیلوې ژوند

سقوط په اوږده تاریخ کې منځ ته راغی . دغه سوالونه په تفصیل سره پروفیسر رسنر په

خپل مضمون «دد رانیا نو دولت تشکیل او سقوط کې ترڅیرني لاندې نیولی دی »

داهم باید وویل شی چې د پښتني ټولنې په مختلفو قبیلو کې دفیودالی روا بطو

چټکتیا، دد رانیانو په عصر کې ...

دافغانستان د ټولو ښارونو په منځ کې اګر چې د هیواد ختیځو، لویدیځو او سیمو او د هندوستان هغه برخې چې په افغانستان پورې تړلی وې، د دوی د ښارونو ترمنځ ژور تو پیر موجود نه و او یو له بل نه لیرې لویدلی وو. همدغه راز عدم ارتباط اوجلا یې توب په منځنیو پیړیو کې دغربې اروپا په مرکزونو کې هم موجود وو. په ښارونو کې هیڅ ډول عمومي ښاري اداري نه وې چې د ښارونو کنټرول اوڅار نه یې په غاړه اخیستې وای. په ښارونو کې یوازې سوداګرانو او کسب ګرانو اتحادیې لرلې. د دوی داحق درلود چې په خپله مشران وټاکې.

د دوی مشران د ټاکل کیدو نه وروسته، د ښارونو حکمرانانو له خوا ټاکل کیدل. د ښار هرې سیمې، ناحیې نه چار چاپیره دیوالونه راګرځول شوي وو. دا هره سیمه ځانته یوه کوچنۍ دنیا وه چې دهغې اوسیدونکی د نژاد او مذهب له مخې ټینګ یوله بل سره تړلی وو. که دا خبره په نظر کې ونیول شي چې د ښارونو زیاتره اوسیدونکی د ښاري فیوډالانو او اشرافو په تعلق کې وو. او کسب ګرانو، سوداګرانو تر ډیرې اندازې پورې د دوی احتیاجات پوره کول، نو په ټینګه ویلای شو چې په ښاونو کې اساسې قدرت هم د دې ښاري فیوډالانو او اشرافو په لاس کې و. د دې خبرې کول په ډیر سخت وي که فرضاً ووایو چې د افغانستان ښارونه په هغه وخت کې د هندوستان په شان په خوتیپونو باندې ویشل شوي وو، لکه د فیوډالانو ښارونه د مذهبي مراسمو په ځای کولو ښارونه او داسې نور. ځینو پوهانو په هندوستا ن کې د دې ډول ښارونو مثالونه نه لیدل (۲۹). د افغانستان لوی ښارونو، لکه څنګه چې

---

۲۹ ــ د، ك ۱۰ انتونوا اثر، «داکبر په وخت کې د مغولی هند سیاسی نظام او اجتماعی روابطو مضمونونه»، مسکو ۱۹۵۲ کال مخ ۱۲۸ د یار کوف د هندا وسیدونکی،

واقعیت و، که دښورتنیوخصوصیاتو څخه یې تول نه‌درل ، نو ډیره برخه یې خامخا ښکې وه. ددې خبرې په څنګ کې دا هم ویل کیدی شي چې دافغانستان په ښارونو کې دمثال په توګه ، لکه کندهار یو له هغو ښارونو څخه و، چې د هغه څخه بادشاهان فیودالان اواشراف راوتل ، اود هغه نه دولت پوځ او دربار خپل احتیاجات پوره کول د هیوادنور ښارونه دلاسي صنعت دمرکزونو په صفت پیژندل کیدل، اوعموماً دخارجي بازارلپاره یې مواد برابرول .

دمثال په توګه کشمیر ، هرات، غزني، کابل اوداسې نورهم دهغه حیثیت درلود ددې نه پرته په افغانستان کې نوره هم داسې تجارتي اوصنعتي مرکزونه موجود ؤ، چې دمربوطو سیمو شاوخوا خلکو، او کلیو احتیاجات یې پوره کول اودمالونوخرڅلاو بازار هم هغو سیمو پورې تړلی و .

ددراني بادشاهانو په دوره کې دافغانستان ښارونو ، نیمه زراعتي بڼه درلوده. دښارونو شاوخوا اوسیدونکي په کرنه اوباغدارۍ باندې لګیاو .ددې سیمو زراعتي تولیداتو اوسیوو تقریباً ، دمربوطو ښارونو ضروریات پوره کول . ج فاسټر لیکي چې د کندهار په شاوخوا کې دمیوو زښت ډیر باغونه موجود ؤ اودغه باغونه دآبادۍ اواوبو لګولو شبکو له مخې ډیرښه سمبال شوي و. فاسترد کابل په هکله هم خپله نظریه وړاندې کوله (۳۰)، چې درباریانو او دباد شاه نږدې کسانو دمربوطو ښارونو زراعتي سیمو زیات حاصلات په خپله مصرفول » .دمثال په توګه برنس لیکي : « چې دوه پیړۍ په دیر شو کالونو کې د پښو رمیوې د ۱۸۰ کال په نسبت دوه ځلې ارزانې شوې وې » .ددې کارعلت دابیانوي چې هلته درباریانو (۳۱).

30—G. forster. A Journey from Bengal to England.... Vol.

دافغانستان لویو ښارونو د زراعتي تولیداتو په سخې زیات شهرت درلود. دمثال په ډول کابل په مندتو اوتوتانوسره ډیر شهرت درلود . د کابل د غه میوې ا ن هندوستان ته وړل کیدې . غزني په غنمو سره مشهورو . دغزني په صادراتو کې اکر چې الوچې هم راتلې .هدې ډول سره د پنجاب هغه ښارونه چې د سیند په لاس کې ؤو هم په ځینو څیزونوسره مشهورو . دمثال په توګه ملتان په خپلو ښوتما کو کې نوم لا ره .

د کابل او کندهار اوسیدونکو زیاتره برخه په دوبۍ کې دښاروڅخه وتل ځکه چې د غه خلک مستقیماً د کراو کروندوسره تړلی و و (۳۲).

داستالف هار ګرۍ چې د کابل په شمال کې پروت د ی ، اوسید ونکی یې زیا تره جولا ګان دی، تقر یبآ ټول او دښار د باندې باغونه هم لرل. دحاصلاتو ټولو لو په وخت کې دوی دښارنه دباندې وتل او هدې وخت کې یې په ښار کې ورکشا پونه او دکانونه تړل.دافغانستان جنوب ختیځو ښارونو (جلال آباد، پېښور) ته د ژمې په موسم کې د نورو سیمو څخه ډیرزیات خلك راتلل (۳۳). د دې ښارو نوشهرت هم هدې کې و ،چې هلته

---

۳۲— ارتور کونولی ـــ Arthur Conolly ) په خپل کتاب :

(Journey to the north of India over Land form England through RussiaPersia Afghanistan, Vol. II, London, 1834, P. 104—107).

کې لیکی: «چې د کند هاراوسیدونکو یوه برخه د توبې سیمې ته کوچیږي، د غه سیمه د ښار په جنوب ختیځ وری کې پرته ده او دوی ورځې مزل ور ته کـــیږي» .

33— H.G. Raverty, Notes on Afghanistan...,P. 65; M. Elphinstone , An account ..., P. 262;

الکساندر برنس په خپل کتاب (سیاحت . . . دوهم ټوك ۱۸۱ مخ کې) لیکی: «چې

خوراکي شيزونه ډيرزيات اوارزان وو(۳۴).

په همدې عصر کې دافغانستان ښارونه عيناً دايران او منځنۍ اسيا ښارونو ښان وو. پدې معنی چې دافغانستان په ښارونو کې دلاسي صنايعو توليد هم روان و. په هغه وخت کې ښار هغه ځای ته ويل کېده چې عموماً، د عنعنوي لاسي صنايعو ځانګو نمايندګان ورکې موجود وو. (۳۵) صنعتګرانو په ښارونو خصوصاً لويو ښارونو کې دفيو ډالانو ضروري وسايل برابرول. يولږ ښارونو(لکه کندهار، هرات، کابل اوپيښور) کې د صنعتګرانو ځانته ډلې دپادشاه دربار سره تړلې وې اودهغه دربار ځانګړې ارتياوې به يې ليرې کولې (۳۶).

ځينو صنعتګرانو به يوازې دلويو سوداګرانو، محتکرانو، فرمايشونه ترسره کول. سوداګرانو يوازې په داخلي بازار قناعت نه کاوه، نوپدې ډول خارجي تجارت هم ددوی له خوا کنټروليده.

---

34— G. forster, A Journey from Bengal to Engl-and..., Vol II, P. 51, 72, 103; M. Elphinstone, An account.., 261, 300;
م. الفنستون ليکي: «چې په کابل کې په رته وره سي پيسه باندې سړی کولای شول چې ۲۵ پونډه ترکاري واخلي، په پېښور کې په دغه مقدار پيسو باندې ۷۶ پونډه اوره اخستل کېدای شول.

۳۵ — دالفنستون کتاب(... An accoint ته مراجعه وکړی ددې مؤلف په قول په کابل کې دمثال په توګه دلاندنيو ځانګو صنعتګران موجود و: زرګران، صحافان دقلم دانانو جوړو نکی، حکاکان دوسلې جوړولو و رکشاپونه،

داسې صنعتګران هم وو ، چې د دوی تولیدات په یوازې اوېوا ز ې په دا خلی بازارونو کې دوړو کو فرمایش ور کوونکو ګروپونو په منځ کې اوبه کید ل . د وی زیاتره هغه شیان تولیدول چې ډول هغوی ته اړو .

زیاتره صنعتګرانو اومه زراعتی مواد ، په خپل تولید کې لګول . دمثال په توګه لکه وړی ، پوستکی ،مالوچ . ځینو صنعتګرانو معدنی مواد . ( لکه اوسپنه ، چودن سره زر ، سپین زر اومس ) په خپلو کورونو کې په ډېر ولړغونو بخاریو کې ویلی کو ل اوبیا یې ډول سره یې دځانونو لپاره اومه مواد برابرول . دا ډول صنعتګران ز یا تره په هغو ځایونو کې اوسیدل ، چې هلته دخلکو ترا کم نه ؤ، مثلا دهندوکش په سیمو، دسلیمان په غرونو کې د کشمیر ، غزنی اوسیدو نکی داسوسینډ په لوړو بر خوا و تاجکستان کې اوسیدل ( ۳۷ ) .

ددرانیانو په امپر اتو ر ی کې د صنعتګرانو ستر مر کز و نه دهیو ا د ختیځو یعنی دهندوستان په مفتوحه ځمکو کې واقع وو، دغه سیمې دمعدنی موادو په تولیداتو کې دامپراتوری د نورو منطقو په نسبت ډیرې پرمخ تللې وې ،دهندوستان په دغو سیمو کې کشمیر تر ټولو زیا ت مشهورو . دسرېنګر ښار په ټوله امپراتوری کې د نفوس له مخې لوی و . داهم باید وویل شی چې په کشمیر کې په دغه د و ره کې دشالونو تولید مخ په سقوط و. دیوه سیاح په قول:« ددی کار علت داو، چې هلته دحکومت استبد اد ډیر زیات و.له دې سره سره داتلسمې پېړ ی په اتیا ومو کلو نو کې په کشمیر کې شپاړ س زره جولایی دستګاوې په کاربوخت وې» .(دمغلو په دوره کې هلته څلوریښتوزره جولایی ماشینو نو کار کاوه ).داتلسمې پېړ ۍ په او اخر و

کې دجولا یې ماشینونو شمیر څلورېشت زروته پور ته شو(۳۸) . دنونسمې پېړۍ په اوسط لوړ بووختیو کې په کشمیر کې دشالونو په جوړولو باندې پنځوس زره کاریګران بوخت وو، چې په کال کې یې دا تیا زرو په شاوخوا کې شالونه تیارول (۳۹).

مهدي رفائیلف چې په همدغه شپو ورځو کې کشمیر ته تللی دي ، وايي چې هلته دشلو زرو جولايي ماشینو نو څخه کم نه وو (۴۰) .

کشمیر دنامتو شالونو تولید نه پرته په هغه وخت کې په لړ ی کې تر تو لو ښه کاغذونه ،چاړې ،قلمدانونه ،نورفلزي سامانونه اوبوره تولیدول.دا هم باید وویل شي چې کشمیردبورې تولیدلپاره اومه مواددپنجاب څخه وړل (۴۱) په کشمیر

---

38— G. forster, A Journey from Bengal to England..., Vol II, P. 20;

رفائل داني بیګف ، هند وستان ته دکرجی سردار رفائل داني بیګف ، سیاحت ، مسکو ،۱۸۱۵ کال ، ۴۳ مخونه ،( عبدالکریم بخاري )«افغان وکابل »،۱۰۵ مخ ،عبدالکریم لیکی :چې ددراني بادشاهانو په عصر کې په دغه شمیر کې مبالغه شوې ده .

39— M. Elphinstone, An account..., P. 509.

۴۰ - دروسیې دخارجی سیاست ارشیف ، عمومی ارشیف ،۱۸۱۹ کال،۱۲، ۱ اوپ . ۵ ر. ۴ دپ شاستیتکو اثروکوری «رنجیت سنګ ته دمهدي رفائیلف ورتګ «شوروي ختیځ پوهنه » ۱۹۵۷ کال څلورمه شماره، ۱۲۹، ۱۳۰ مخونه ) .

41— G. forster, A Journey from Bengal to England..., Vol.

کې د کاروبش اوتولیدی موسسو پلټنه مونږ د اصلي مقصد څخه لیري کوي دومره باید ووایو چې زمونږ سره څیني موجوده معلومات داثابتوي چې د پښتنو امپراطوری په دغې غني او پرمخ تللې سیمې کې تجارتي پانګه اودصنعت څانګې ډیرې په مخ تللې وې. مونږ په کشمیر کې دتجارتي پانګې عالي فورمونه تردې اندازې پورې لیدلای شوچې محتکرانو په صنعتګروته په ټاکلې نرخ اومهمواد ور کول. الفنسټون د کشمیرناستوشالونوپه هکله داسې وایي په کشمیر کې ډیر اعلی شال ممکن د یوه کال په موده کې ماشین پاندې جوړ کړي. دجولایي ماشین شاته معمولا دوو کسو کار کاوه. شال وو دلو ډیر زحمت غوښت. څکه چې دشال مختلفې برخې په بیلابیلو ماشینو نوباندې وودل کیږي دشال هرې پارچې څارنه د یوه استاد له خوا کیږي اجیر صنعت ګران د یوه لوی استا د نه مستقیماً رهنمایي کیږي. داستاد تنخوا په ورځ کې ۶-۸ پیسې کیږي دساده کارګرانو تنخوا دورځې ۱-۳ پیسوته رسیږي (یوه پیسه یونیم انګلیسي پني سره مساوي ده) هغه تجارچي دشالونو تجارت کوي زیاتره یوه ټاکلي ځای کې جولایي ماشینونه راغونډ وي او د هغوی څارنه کوي سوداګران کله کله تیار جوړ تارونه صنعتګرانو ته رسوي او صنعتګران په خپلو کورونو کې په کاربوخت وي. کله چې مال تیارشونو بیا یې سوداګر ګمرک ته وړي او هلته په هرشال باندې تاپه لګول کیږي (۳۲) .

ددې پورتني تفصیل څخه په جوته معلومیږي چې صنعت ګر مولد داومو موادو او دخر څلاو بازار سره رابطه نه درلوده بله دا چې سود اګر محتکر د هر مولد سره تماس نه درلود . دسوداګر تماس دصنعت ګر — منځګړي سره و . دغه منځګړي ته سوداګر دشالونو کیفیت، رنګ اونقاشي فرمایشونه ور کول. منځګړی صنعتګرد کار اوساده کارګرانو څارنه کوله ، اوتنخواه یې دساده کارګر څخه

تولیدنه دا نتیجه گیري کولای شوچې د ۱۸ ـ ۱۹ ـ پیړیو په حدود کې کشمیر کې د موټو فکتور صنعت نطفې موجودې وې.

د درانیانو امپراتورۍ زیات تولیدي مرکزونه په ختیځو سیمو کې واقع و. ددې نه پرته ملتان ، لاهور، بهاول پور، دغازي خان دیره او ځینې نوربیارونه دور پېښو تو کرانو، قالینو، گلدوزي او تما کو صنعتي مرکزونه و. دامپراتورۍ په غرب کې لکه هرات ، کابل ، کندهار دلاسي صنعت تولیدله پلوه مخ کې و. ددې ښارونو اوسیدونکي نه یوازې په لاسي صنعت بوخت وو، بلکه دښارونو شاوخوا اوسیدونکو هم دلاسي صنعت په تولید کې برخه اخیستله. دمثال په ډول د هرات ښارشا وخوا او سیدونکو یوډول زیړه ورین توکران وودل ، اودهغوی نه یې کالي تیارول. ددې سیمو خلکو تولیدات سوداگرانو راتیول او شمالي ایران ته یې استول (۴۳).

دافغانستان په صادراتو کې نه یوازې دلویو ښارونو صنعت گرانو ، لکه د کشمیر ملتان، پېښور او هرات تولیداتو ځخه کار اخیستل کیده ، بلکه د کلیو او بانډو صنعت گرانو تولیدات هم په کې راتلل. دمثال په توگه داستا لف نخ پارچې په عمومي ډول منځنۍ اسیاته صادریدلې. دکاني گرم (په وزیرستان کې یو ځای دی) او چاریاغ (په لغمان کې دیوه ځای نوم دی) صنعت گرانو تولیداتو د کیفیت او جنسیت له مخې خاص نوم درلود ، او دهغوي لپاره زیاته تقاضا اود خرڅلاو بازارونه موجود وو.

پښتنو زیاتره داسې سیمې فتح کړې وې چې هلته صنعت گران اوسوداگران زښت ډیر وو. دد ې سیمو اوسیدونکي زیاتره (هندوان او تاجکان) وو، ولې ددې سره صنعتي

کارد کشمیریانو او هندوانو په لاس کې و (۴۴). په وزیرستان کې صنعتي تولیدات د تاجکانو او ارمړو کارو .

په ښارونو کې صنعتګرانو زیاتره په ګوښې صورت کار کاوه .دوی کله کله د اتحادیو په ډول هم په ګډه سره کار کاوه ،چې اروپایانو د غه تولیدي فورم په «شیخ» یعنې «صنف»سره یادولو .

هغه کسان چې د ښاري سوداګرانو صنعتګرانو اتحادیو په سر کې ولاړو، هغوی ته «کدخدا »،«استا باشي» اویا «ریش سفید» ویل کیده. کدخدا یانو که له یوې خوا د خپل «صنف» کارونه اجرکول ،نو له بلې خوایې د مربوطې اتحادیې او ښاري ادارې نمایندګانو سره د منځګړي په صفت هم روابط ساتل (۴۵) .

د افغانستان په مرکز اولویو ښارونو کې د صنعتګرانو داستعمار داسې فورمونه موجودوو،چې دغلامانو استثمار سره یې هیڅ توپیر نه درلود .«بندیان، غلامان،عموماً

---

44— H. W. Bellew, A general report on the yusufzais **in six chaptors** with a map, Lahore, 1864, P. 182—183;

د دې صنعتګرانو ټول‌شمیر بیلیو ۹۱ زره کسان ښیي ،ددې موضوع لپاره

راورټي اثرته مراجعه وکړئ :

H. G. Raverty, Notes on Afghanistan..., P. 209;

دهندوستان په جګړو کې د پښتنو لاس ته ورغلي وو (۳۶) دغو غلامانو په خاصو ورکشاپونو کې کار کاوه، او په دربار کې د دوی دکارونې لپاره مخصوص دفترونه موجود و، په ډېر تاسف سره باید ووایو چې سونږ سره دا معلومات نشته چې دغو له مخې د غلامانو صنعتګرانو د تولیدفورمونه څرګند کړای شو. یادا وښیو چې د دوی د استثمار مشخص فورمونه کوم و.

د پښتنو په امپراتورۍ کې دارتو ګمکو رانیول، دافغانستان لپاره په موقتي ډول دا امکانات برابر کړل چې د هیواد مختلفو سیمو ترمنځ تجارتي روابط لا پسې تسریع کړي، او پدې ترتیب سره د هیواد خارجي تجارت لا ګړندی شو. دافغانستان په عمده

۳۶- یوازې د پانی پت جنګ نه وروسته احمدشاه درانی، څورلس زره صنعتګران او کاریګران د ښندیانو په توګه ونیول. دغو کار یګرانو او صنعتګرانو د مرهټیانو په پوځونو او کمپ کې کار کاوه، فیض محمد، سراج التواریخ، اول ټوک ۲۵ مخ کې د دغو بند یانو شمېر پنځو پشت ز ر ه ښو ولی دی، خونواب علي ابراهیم خان د دوی شمیر دیرش زره ښیي، (تاریخ ابراهیم خان)

دغه کتاب ته رجوع و کړی: H. M. Ellion-Jhon Daw Son.

"the history of India as told by its own historians, Vol. VIII, London, 1977, P. 280";

("Ahmem shah Duranis feldzuge in Hindostan), "Asiatische Magazine" Bd. 1 (weimar) P. 361, 1802.

په دغه بې مولفه کتاب کې

لیکل شوي دي چې د پانی پت جګړې نه وروسته د احمدشاه لاس ته شل زره مریان،

خارجي تجارت کې اګر چه یې ځینو پښتنو سردارانو ګډون درلود، و لې د هغه زیاته برخه د هندي سوداګرانو په لاس کې وه .

دخارجي تجارت عملیات عموماً دسوداګرانو په لاس ترسره کېدل . اودې کار په خپله دامعنی درلوده ، چې په خارجي تجارت کې دسوداګرانو لپاره دغني کېدو لارې ، در کونه لاز پاتېدل .

ف . انګلس لیکي چې «تجارتي پانګې په اول کې کم له کمه کولای شول چې خپله ګټه یوازې دخارجي تجارانو څخه دوطني تولیداتو په اخستلو سره او یا دداخلي سوداګرانو څخه دخارجي مالونو په رانیولو سره خپلو ګوتوته کړي»(۴۷).

دتجارت اوپولي اړیکو پر مختګ دمختلفو سیمو لپاره داموقع په لاس ورکوله چې هغوی دمالونو اومواد و په تولید کې د تخصص خواته کش کړي .

دتجارت اوپولي عملیاتو نسبتاً لوړ پرمختګ نښانه داوه، چې په هیواد کې «وکسل» دحوالې سیستم دېر زیات مروج و. داسې دوله سخې داهم ویل کېدای شي ،چې که افغانستان ته دزیاتې سودې لپاره سوداګر راتلل ، او یا یې په هیواد کې زیاتې سیمې کتلې ،نودوی (سوداګرانو) دځانونو سره نغد پیسې نه وړلې ،بلکه حوالې اوبراتونه یې ځانونو سره ګرځول (۴۸) .

ددرانیانو امپراتوري په اخرو کلونو کې دیوې خوا په هیواد کې فیودالي ګډوډۍ

---

۴۷ــ ف . انګلس د «کاپیتال» دریم ټوک ، ضمیمه، ك . مارکس . کاپیتال دریم ټوک ، مسکو ، ۱۹۵۵ کال ، ۹۱۷ مخ .

... from Bengal to England

زیاتې شوې له بلې خوا تجارتي ترانزیتي لارې تغیر کوي. د همدې عواملو په نتیجه کې د هیواد خارجي تجارت مخ په زوال شو. اما څنګه چې په هیواد کې مالي، پولي روابطو پوره انکشاف کړی و، او د داخلي مالونو تبادله هم ټینګه شوې.

وه نودهمدې شرایطو په لمن کې د داسې ښارونو، لکه هرات، کندهار، کابل، پېښور په شاوخوا کې محلي بازارونه منځ ته راغلل. د کلیو او بانډواو سید ونکو عیناً د کوچیانو اونیمه کوچیانو پشان چې د هیواد په ولا یتونو کې او سېدل، په دا یمي صورت یې د ښاري صنعت ګرانو تولیداتو ته احتیاج احساسوه. له بلې خوانه د ښارونو اوسیدونکو هم په خپل وار سره د زراعتي سیمو حاصلاتو او حیواناتو ته ضرورت درلود که زراعتي حاصلات یې بزګرانو څخه اخستل، نود حیوانا تو لپاره یې خامخا باید مالدارو کوچیانو ته مراجعه کړې واي.

د درانیانو په امپراتورۍ کې د پرمخ تللې فیودالي محیط وجود، د دې سبب شو چې د پښتنو اجتماعي ژوند چې ماقبل تار یخي بڼه یې درلوده، د سقوط په وخت کې بیا هم ونه کولای شول چې د پښتنو ښارونه جوړ کړي. دا پدې معنی چې د هیواد ټول مرکزونه داوسېدونکو اونفوس له مخې غیر پښتانه اقوام و. حتی په کندهار کې د هندي صنعت ګرانو مکملې کارتې پرتې وې، کوم چې د هند وستان څخه دلته راوستل شوي وو. له دې نه پرته په کندهار کې ډیر زیات تاجکان اوسېدل. فریرلیکي چې «په کندهار کې صنعتي اوتولیدي طبقه د هندوانو اوتاجکانو څخه جوړشوې وه» دغه صنعتي اوتولیدي طبقه هلته یعنې په کندهار کې ساتل کیده، که د دې «صنعتي اوتولیدي طبقې څخه چادا کوښښ کړی وای چې د هغه ځای څخه ووځي، نوهغه

برخه هم د تاجکانو څخه تشکیل شوې وه ، اوددې سیمې بومي اوسېدونکي وو. په کابل کې د دې نه پرته هندي نژاده خلك هم اوسېدل (۵۰) . کابل ته د ۱۹ پېړۍ په اوا یلو کې تاجکان ، (قزلباشان ایرانیان دي چې کابل ته نادر افشار او احمدشاه راالېږدولي وو) ، تشکیلول (۵۱) .

د ۱۹ پېړۍ په لومړیو کالونو کې د هرات دښار اوسیدونکي تش لس فیصده پښتانه و(۵۲).

د پېښور ښار اوسیدونکي زیاتره پرخه هغه خلك وچې د هندوستان څخه دلته راغلي و لکه: پنجابیان اوداسې نور قومونه . په پېښور کې تاجکان هم اوسیدل (۵۳) .

داسماعیل خان دیرې ښار زیاتره دبلوڅانو څخه ډك و(۵۴ ). پدې ترتیب سره ویلای شو چې دافغانستان دښارونو زیاتره برخه اوسیدونکي غیرپښتانه خلك و .

دافغانستان په ښارونو کې په عمومي صورت د پښتنو قبایلو اشراف ددوی نږ دې کسان، روحانیون ، عسکر او صاحب منصبان اوسیدل (۵۵) ددې پرته گروپونونه پرته که نور پښتانه ښارونو ته راتلل ، نو هغوی یوازې په غریبي او کارېسې راتلل. څومره

---

50— G. forster, A Journey from Bengal to England..., Vol. II, P. 73.

51— H. G. Raverty, Notes on Afghanistan..., P. 65.

52— (Abstract of capta in christies, Journal), P. 415;
M. Elphinstone, An account..., P. 489.
پدې ترتیب سره په هرات کې دپښتنو اوسیدونکو شمیر دښهر کارپورڅخه زیات نه و.

(J. Burnes Narrative of a visit to the court of sinde and Hyderabad of the Indus Edinburgh, Lonon, 1839, Appendix P. 29).

53— G. forster, A Journey from Bengal to England.

54— M. Elphinstone, An account..., P. 29.

چې معلومه‌ده ، پښتنو تقریباً دصنعت کسب اوتجارت سره کارنه‌د رلو د. اگر چې هغه پښتانه چې په‌دایمي صورت په‌ښارونو عموماً پایتخت کې اوسیدل ، دوی‌تجارت ته‌ځانونه کشول . دپښتنو تجارت په کاروانونوسره کیده،ددوی تجارت عمده‌فروشي وه ، پولي‌معاملې اوسودخوری یې‌کې‌زیاته‌وه .

دالفنسټون ایکنو ځخه‌داسي معلومیږي هرڅومره‌چې‌د کندهار خواته‌سړی‌نږدې شوی‌وای ، په هغه اندازه په کلیو کې دصنعتگرانو شمیر کمیده .دلته مقصد هغه ښارونه دي چې د کندهار په لاری‌باندې پراته‌وو (٥٦).ددې خبرونه‌داسې نتیجه کیدای شي،چې د کندهار شاوخوا ښارونو ، خپل احتیاجات د صنعتي شیا نوله پلوه دهغو مالونو ځخه پوره کول ، چې د ې ښارته راوړل کیدل ، او داقتصاد له مخې یې ددې ځایونو او سیدونکی‌خپل لوري ته جذبول (٥٧) .

په ښارونو کې ټول قدرت‌دپادشاه‌دنمایند گانوپه لاس کې‌و .دهغه نمایندگان په خپل وار سره‌دمربوطوسیمو فیودالانو تر تاثیرلاندې رتې واقع‌وو ، یاپه بل‌عبارت سره ویلای‌شوچې قدرت‌دمحلي‌حا کمانو اوفیودالانوپه منځ کې شریک وو . په‌محلي حا کمانو باندې دخپلې سیمې روحانیونواودر و یشانو تاثیر هم‌زیات و .

ښاري کارونه مستقیماً د کلانتر له خوا اداره کید ل . کلا نترا ن عموماً دپښتنو سردارانو په لاس ټا کل کیدل . په‌ښاریانوباندی امرونه ، یافرمانو نه منل

---

56— M. Elphinstone, An account..., P. 404.

٥٧— اي . م . ریسنر په پښتنو کې دفیودالیزم‌وده ، اودوی‌ددولت‌تشکیل، مسکو،۱۹۵۴م ، کال ، ۲٦م مخ ، .

او یا د دوی څخه مالیه ټولول، د کلانترانو وظیفه وه. د مالیې په ټولولو کې د کلانترانو سره په ښارونو کې د صنعتګرانو اتحادیو مشرانو چې هغوی ته ریش سفیدان هم ویل کیدل، مرسته کوله. هغه ټاکلې اندازه مالیه چې ښاریانو باید کلانتر ته ورکړې وای سمپین ډیرو په خپل منځ کې سره ویشله، بیا یې د خپلو اسامیانو څخه ټولوله او کلانتر ته یې سپارله.

کلانتر لاس لاندې د روسامورینو میرشاب، محتسب او د بازار داروغه کار کاوه. میرشاب ته «میرزا بین»، «میراتش» او «میرشاب ګیر» هم ویل کیده، د میرشاب لاس لاندې قاشقچي واقع و. قاشقچي د ښار د مختلفو سیمو د پیره دارانو اداره کوله. په ښارونو کې دامې پیره داران هم وو، چې هغوی ته د ښار او سیدونکو (سوداګرانو، صنعتګرانو) په خپله تنخوا ورکوله. دا د دې لپاره چې دغه پیره داران د دوی ناحیې وساتي. د ماسختن یوولسو بجو نه ترسپیده داغ پورې د ښار ټولو ناحیو ترمنځ دروازې تړل کیدې، او چا ته دا اجازه نه ورکول کیده چې د کورونو څخه د باندې کوڅو ته را ووځي. که څوک مجبور وای چې په ممنوعه وخت کې کوڅو ته راووځي، نو باید څراغ ورسره وای، ترڅو معلوم شوي وای چې کوم بدنیت نه لري. میرشاب له خپلو پیره دارانو سره د شپې له ښار نه ګرد چاپیره ګرځیده که په چا باندې بدګومانه کیده، هغه یې نیوه. څنګه چې سیاحان لیکي، په هغه وخت کې په ښارونو کې نظم ډیر ټینګ و، او همدا نظم د دې باعث کیده چې جرایم لږ و (٥٩).

محتسب د اسلامي روحانیونو نمایندګانو له خوا ټاکل کیده. د محتسب وظیفه داوه چې چا ته دا موقع ورنکړي چې د اسلامي قوانینو او اخلاقو څخه سر پیچي وکړي

داروغه بازار وظيفه داوه چې د ښار په بازارونو کې د نظم څارنه وکړي.
داروغه بازار او محتسب وظيفه يوه سره ي ترسره کوله. د ميرباش، محتسب او داروغه بازار وظيفې په اجاره ورکول کيدې. هغه چاچې دغه نوکري په اجاره اخيستلې کوښښ يې کاوه چې له خلکو سره معاملې په خپله ګټه وڅرخوي. رشوت خوري پکښې جاري وه، او خپلو دفترونو کې يې د زياتومعاملو د وسيې ماخوادې خوا کولې (٦١). الفنستون ليکي: چې ښاري پوليس د شوکې قهرمانان وو. مير شابان او محتسبان د چوراواستثمار پهلوانان او دوی ته په رته کرکه او نفرت سره کتل کيدل (٦٢).
د ښار بېلا بيلو سيمو واکداران يا کد خدا يان يعنې د صنعتي او تجارتي اتحاديو مشران و، او يا په ښار کې د اوسيدونکو ښتنو سيمو ملکان اوسپين ږيري وو، چې هر يوه ته په ښار کې د خپلې قبيلې او خپلې نا حيې مشري په غاړه وه.
د ښتنولويه امپراتوري چې مؤسس يې احمدشاه دراني و، په خپلې غيږ کې يولږ داسې سيمې رانيولې وې، چې هلته فيودالي نظامونه او فيودالي دولتونه لا څو پيړی د مخه منځ ته راغلي وو. په خپله احمدشاه دراني او ډير وزيا تو ښتنوخانانو زيات کالونه د داسې خته څوواکدارانو لکه، نادر افشار سره نوکری کوله. په دې کې شک نشته چې ښتنو د ايران هندوستان او منځنۍ اسيا اداري سيستمونه او د هغوی د سازمانونو اداري تشکيلات ليدلي و. د ښتنو خانانو ټوله تجربه د دوي د خپل دولت د تشکيل په وخت د عمل ډ ګر ته راوو ته. د وی ځا نګړ ي خصو صيات هم ارل او هغه داو، چې د ښتنو فيو ډالي دولت پداسې وخت کې جوړ شو، چې لا تر اوسه د دوی اجتماعي ژوند په تاريخي لحا ظ د فيوډ ليزم دورې ته په ټوله معنی سره نه وو شامل

شوی . فیودالی دولت دخپلو گټوپه غرض کوښښ کاوه دغه حالت وساتی . دغه صفات مونږ په صفوي ایران اودبخاري په سنګیتیا نو(٦٣)، کې هم لیدلی شو، ولی په افغانستان کې دقبیلو ژوندفیودالی اوپوځی اداري تر منځ مناسبات دبل هرځای په نسبت ډیر ټینګ وو دا حالت په خپله ښیي چې افغانستان په دغه دوره کې په اقتصادی او اجتماعی لحاظ وروسته پاتې و. دپښتنو دغه اقتصادی او اجتماعی وروسته والی دقومی او قبیلوی روابطو په ټینګوالی کې داسی مرسته کوله چې دپښتنو زیاتو قبایلو کې د کوچیانو په صورت مالداری د اقتصادی فعالیت اساسات تشکیلول. د پښتنو هغه برخه کی چی په ځمکو باندی میشته شوی وو، هلته یې دپلارواک سیستم خصوصیات لا ټینګ کړل. د کوچیانو او په ځمکو باندی دمیشته شویو پښتنو ترمنځ په دایمی صورت همسایګی دا شرایط برابرول چې د کار سیستم لا پسې ضعیف کړی. د کوچیانو میشته کیدل سست شول او بالاخره په پښتنو کې دقبایلو اشرافو سیاسی پوهه دخپلو قبایلو د نورو غړیو په نسبت زیاته شوه .

کله چې په درانی امپراتوری کې دفیودالي طبقې پاسنی قشر په حاکمه او ممتاز قشر بدل شو، نو د پښتنو خانانو دغه حالت خاصتا په خپلو ګټو څرخاوه. ځکه د دې حالت په ساتنه کې د دوی دحاکمه طبقې اقتصادی او سیاسی ګټه وه او هم یې دقبایلو قوت نه د ورنږدی سیمو په نیولو کې کار اخیست. پدې ترتیب سره احمدشاه درانی و کولای شول دقبایلو قوت نه د ایران او هندوستان په تابع کولو کې په اوله درجه استفاده وکړی د پښتنو ځوان دولت دولتي ژبه فارسی شوه په د رانی امپراتوری کې تولنه یو ځي تیرمینا لوژی

# څلورم فصل

## اداري ویش او سیمه ایز حکومتونه

د درانیانو امپراتورۍ د اداري ویش له مخې په ولایتونو ویشل کېدله. د غه ولایتونه ځینې د لویو قبایلو محکې وې، او ځینې هغه سیمې وې چې د پښتنو په نوي دولت کې د ولجه محکو په ډول نیول شوې وې. په درانی امپراتورۍ کې د ولایتو د لویوالی او د وګړو د شمېر له مخې یو بل سره ډېر توپیر درلود. د هغو دودونو له مخې چې په منځنیو پېړیو کې موجود وو، ټول ولایتونه په دوو ډلو ویشل کېدل، چې یو ته خراساني ولایتونه ویل کېدل، او بل ته هندوستاني. د هندوستاني ولایتونو په ډله کې هغه ولایتونه راتلل چې د مسلمان غرونو ختیځ ته پراته وو، د دې عنعنې مراعات د مثال په ډول عبدالکریم بخاري هم کړی دی(۱).

---

۱ ــ عبدالکریم بخاري، کابل په خراساني ولایتونو کې راوړي، او د کابل شمال ته چاریکار په هندوستاني ولایتونو کې ورګډ وي. د دې نه علاوه لوګر چې د کابل او غزني په منځ کې پروت دی، د خراسان په جمع کې راوړي. (عبدالکریم بخاري، افغان و کابل ... [illegible] مخ) په منځنیو پېړیو کې تر هندوستانه پورې د افغانستا ن

گله چې بخاری خپل تاریخ لیکه ، هغه وخت هم دافغانستان دخلکو په شعور کې دغه پوړتنې و پشوښه پراته وو (۲) . ددرانیانو په امپراتوری کې د ولا یتو نو شمیر هروخت یوډول نه و . داحمدشاه دراني په وخت کې امپراتوری دیرش ولا یتونه لرل ، (پدې حساب کې ځینې لوی لوی محلونه په ولایتونو کې نه شمیر ل کیدل او هغه مستقیماً دپادشاه له خوا اداره کیدل ).

داحمد شاه جانشینانو په وخت کې دامپراتوری دولایتونو شمیر ۲۷ ته راتیټ شو، دا ځکه چې ځینې ور څیرمه سیمې له لاسه ووتلې .

ټول ولایتونه په دروګروپونو ویشل کیدای شول .

۱ــ لو مړی هغه سیمې چې مستقیماً د پا دشا ه تر اداري لاندې وي ، ددې سیمو حاکمان بادشاه په خپله ټاکل. پدې برخه کې هغه ولایتونه راتلل، چې په هغو کې پښتانه نه اوسیدل ، بلکه دسوبې په نتیجه کې داحمدشاه لاس ته ورغلي وو .

۲ــ تابع سرداري چې دهغو ځایونو سردارانو ، حاکمانو له خوا په میراثي ډول اداره کیدلې .دغه سرداران حاکمان په خپلو سیمو کې دبادشاه (گورنران) گڼل کیدل .

ولې بادشاه نه شوای کولای چې دغه سرداران حاکمان لیری او یاتبدیل کړي. دوی په خپلو سیمو کې په کو رنیو چارو کې گورته خپلوا که حا کما ن وو . دوی بادشاه ته باج ورکاوه ، (ولې دا هم هر وخت نه) اوهم یې شاهي پوځ ته دعسکرو ټولګی وراستول .

۳ــ هغه سیمې چې هلته عموماً پښتانه اوسیدل ، مرکزي حکومت ته دهغوي

توکه داخلی آزادي ساتله ، او اداره یې هم دخپلو خانانو په لاس کې وه .

دولایتونو په لومړي ډله کې دغه لاندې ولایتونه شامل وو: کندهار، هرات، فراه ، غزنی ، کابل ، بامیا ن ، غور بند ، جلال آ باد ، پېښور د یرهٔ غازي خان ، دیرهٔ اسماعیل خان ،شکارپور ، کشمیر،ملتان ، بلخ او اقچه . لاهور اوسرهند هم پدې ولایتونو کې راتلل ،خو داحمد شاه درانی دسلطنت په وروستیو کالونو کې دغه وروستني دوه ولایته یعنی لاهور او سرهند دپښتنو له لاسه وتلي وو .دولایتونو په ډله کې ځینې لوېې سیمې هم وې چې مستقیماً له مرکزنه سیده اداره کېدلې او هغه دا وو :اټک ،مظفرآباد، سیبي ،هندي هزاره ،کلات غلزایی ،چا ریکار .

په دوهمه ډله کې دغه لاندې تابع سرداري شا ملېدلې ، او دوی دفورمالیتې له مخې دامپراتوری ولایتونه کڼل کېدل :خراسان د(مشهد ،تون ،طبس او نور) سیستان، بلوچستان ، سند ،بهاولپور او ځینې نورې کوچنی سیمې .

په دریمه ډله کې دغه سیمې راتللې : دغلجیانو ، ساپو سیمې، د بنگښا نو (بنگښو) دایما قوقبایلو ځمکې هغه سیمې چې ایماق اوهزاره ور باندې او سېدل ، او همد اډول یو لړ نورې ورې سیمې .لوي ولایتونه په محلونو باندې ویشل کېدل (لکه څنگه چې دمخه وویل شو ل ځنې داسې لوی محلونه هم و ' چې هغوي په ولایتونو کې راتلل ) .

تر ټولو کوچنی اداري سیمه یېز واحد ته مالیاتي محل (پرگنه )ویل کېده ، دغه واحد دامپراتور ی په ختیځو سیمو کې «تومان » هم بلل کېده ،چې په هغه کې ځو باندې او کلي راتلل (۳) .د افغانستان په لوید ځو برخو کې دغوو رو

اداري واحدونوته «بلوك» ويل کيده . د هغو قبايلو ځمکې (په هغه صورت کې چې د دوي سيمو ، د ځانګړو ولايتو لو بنه نه درلوده، بلکه ديوه بيل اداراي واحد په ډول په ولايتونو ورکړ يدې، اوډپادشاه د حاکمانو په لاس اداره کېدې).

چې اندازه يې ډيره زياته نه وه، هغوي ته (تپه) يا «علاقه »ويل کيده. دلوړې دلې ولايتونو حاکمان په خپله دبادشاه له خو اتيا کل کيدل . دوی ته عموماً «حاکمان» يانائب الحکومه ګان ويل کيدل. ددرانيانو امپراتوری په هندي ولايتو نو کی حاکمانوته دمغلودوری پشان «صوبه دار» ويل کيدل (٥) .

کله چې احمد شاه په ١٧٥٧ کال په هندوستان کې د امپراتوری ټولوولايتونو اداره خپل زوی تيمورشاه ته ورکړه ، نود « نظام »لقب ورته ورکړ شو(٦) .

---

٤- دمثال په توګه دغه لاندې کتاب ته مخه وکړیء :

Irwin, Memoir onthe climate soil produce, and husbandry of Afg hanistan (and neighbour ing countries ,"Journal of the Asiatic societyof Bengal" Vol. VIII--IX, (Calcutta), 1839 1840) P. 760,761.

٥-عزيز الدين پو پلزا يی ليکی : چې « تيمورشاه دراني » ١٦٠ مخ ، د تيمورشاه په وخت کې د «صوبه دار لقب،دولايت عسکری لوی قوماندان ته ورکول کيده ، ددې خبرې د پاره دغه ، کتابونه وګوریء :

٢٠، ١٨، ١٦ (Hakikat) فيض محمد ،سراج التواريخ ، لو مړ ی ټوک ١٧ مخ ،

G. forster, A Journey from Bengal to England through the northern part of India, Kashmire, Afghanistan and persia, and into Russia by the caspian—sea, Vol. II,1798, P. 10.

٦- حسين علی، زينت تاريخها ، ٣-٤مخ ،فيض محمد «سراج التوا ريخ »

دحاکمانو مقرري د پادشاه په مخصوص فرمان سره ترسره کېده، ولې په فرمان کې په جوته سره داښودل کېده چې حاکم باید څومره پيسې مرکزي خزانې ته تسليم کړي. حاکم ته د دربار نه خوانه په ښکليو کاليو نه پرته کله کله اِفتخاري وسله هم ورکول کېده. په داسې وختونو کې حاکمانو ته دوياړنې لوړلوړ القاب ورکول کېدل د څه تول شيان چې اوس بې ياد شو په شاهي فرمان کې شامل و د مثال په ډول محمدامين خان د معين الملك زوی د خپل پلار مرګ نه وروسته چې د لاهور حاکم وبير ته صوبه دار وټاکل شو نو د خپل پلار لقب د معين الملك هغه ته هم ورکړ شو. په دې سربېره کله چې عمر سنګ د هند صوبه دار مقرر شو نو د «راجه راجګان» لقب يې هم واخيست د وياړنې کالي هم نوموړي صوبه دار ته ورکړې شول .

هر صوبه دار يا حاکم عموماً ۱ ـــ ۳ مرستيالان ـ نايبان لرل کله کله حاکمانو ته دولايتونو عسکري لوی قوماندانانو وظيفې هم ورکول کېدې. خودی کارزيات عموميت نه درلود. په ولايتونو کې عسکري لوی قوماندانان د مرکزله خوا ټاکل کېدل د دراني باد شاهانو په دورو کې لکه څنګه چې رواج و د ولايتونو حاکمان د پښتنو قبايلو او يو خانانو څخه ټاکل کېدل. د احمدشاه دراني په وخت کې د شکارپور صوبه دار دوست محمد خان کاکړ وو او د سرهند حاکم عبدالصمد خان محمدزی او زين خان سو مند و. د تيمورشاه دراني په وخت کې د کشمير صوبه دار کريمداد خان ساکزی و .د شاه زمان په وخت کې د مظفراباد صوبه داری مظفر خان يوسفزی ته وسپارل شوه، او دډېره اسماعيل حاکمي محمد خان سدوزی ته ورکړای شوه. په دی باره کې استثناآت هم دېر.د مثال په توګه

داحمدشاه دراني په وخت کې د هرات حاکم يوه موده درويش علي خان هزاره و .

صوبه دار سلیمان و (٧) .د تیمور شاه دسلطنت په موده کې د هرات حاکم شاهزاده محمود د تیمورشاه زوی و (٨) .په کندهار کې همایون ،او په کابل کې ( البته د خپل پلار په غیاب کې )شاه‌زمان د حاکم چارې اجرا کولې ، د پېښور حاکم عباس او دغزنی حاکم شجاع و (٩) .

شاهزاده گانو په خپلو صوبو کې دومره اختیارات لرل،لکه په خپله بادشاه. ددوی توپیر د بادشاه سره دا وُ چې په نوم یې «خطبه» نه لوستل کیده ، او هم دسکو و هنه د بادشاه په نوم وه. شاهزاده گانو خانته دربارونه ، وزیران او په ولایتونو کې پوځي قوماندانان لرل ، دغه لوړ پستونه عموماً د پښتنو خانانو له خوا اداره کیدل .دمثال په توگه کله چې قیصر د هرات حاکم وُ (قیصر د شاه زمان زوی وُ)، په اول کې دده وزیر زمان پوپلزی وُ.او وروسته دغه چوکی دلوی سردار (سردار ان) مد دخان (١٠) زوی میرافضل خان ته ورکړای شوه .تقریباً ویلای شو چې په هرات کې دربار هروخت د درانی بادشاهانو وروڼو ، زامنو او مقتدرو قزلباشو خخه چې د بادشاه په دربار کې یې نوکري کوله جوړ یده .

دصوبو او مرکز ترمنځ چې کوم ارتباط ټینگیدای شو، نو هغه معمولاً داسې و،چې هرې صوبې د کال په اخر کې « دیوان اعلی » ته تیار راپور رالیږه ،او بیا یې خزانې ته دصوبې عایداتو څخه په یوه ټاکلی اندازې پیسې استول کیدې .مرکز

---

٧— حسین علی ،زینت تار یخها،م، ٦ پانی ،محمدحیات خان افغانی،٧٠ مخ .

٨ — د تیمورشاه په موده کې د هرات حاکم ،خو کاله دشاهزاده محمود نه پخوا

اسلام خان پوپلزی و (عبدالکریم بخاری ، افغان و کابل ... مخ )

لپاره د باج (مالیې) او عسکری تواګیونه پرته چې د صوبو څخه یې اخستل، نورېې هیڅ اهمیت نه درلود .

په صوبو او سیمو نوکې زیاتره وختونه، ظلم او استبداد حکمروایی کوله «۱۱» او د صوبو حاکمانو لپاره تر هر څه د مخه خپلو ګټو قیمت درلود . هرحاکم پخوالدې چې کوم مهم او غنی ولایت ته مقررشی، مجبو ر وو چې د دولتی خزانې ته زیات اندازه پیسې تحویل کړي. د مثال په ډول اله سنګ چې په سرهند کې د وزیر شاه ولی خان پیشنهاد سره حاکم مقرر شوی و . شاهی خزانې ته یې (۳۰۰) زره روپۍ را ولیږ لی د دې اندازې روپیو ورکړې نه وروسته اله سنګ ته د حاکمی فرمان ورکړ شو (۱۲) دې شرایطو حاکمان دې ته تشویقول چې خپلې صوبې ته د رسیدو سره سم خلکوته لاس واچوي او ترڅو د خپلو تللو روپیو جبران وکړي . هغه سیمې چې په هندوستان کې احمدشاه درانې فتح کړې وې هغو ځایونو د کوچنیو کلیوالی اداري واحدونو په سرکې د کلي مشرولاړ وچې هغه ته یې «پټېل» وایه . «پټېل» د خپل ځای او ټولنې ټول مشکلات د «پنچایت» په مرسته حل کول «پنچایت» د دولتمنو بزګرانو څخه جوړیده .

«پټېل» یا د کلی مشرته د مځکو ابادی په خپل وخت ، د باج ټولو او کاروړ په غاړه و، د دې نه وروسته پټېل د پنچایت په مرسته د خپل کلي او شاوخوا مربوط ځایو نو

---

۱۱ — حتی فاستر چې په ۱۷۸۳ کال کې یې کشمیر ته سفر کړی دی د کشمیر حاکم په هکله داسې لیکی : «که چیرې دده باج په پرله پسې صورت دربارته لیږل کیږی، نو ددې امکان پیدا کوی چې هرډول استبداد عملی کړی . »

منځنا قشې او مشکلات فیصله کول ، او هم یې د ضرورت په وخت کې د خپلو آسامیانو څخه د عامه چارو د کښت لپاره پیسې ټولولې .

د پټېل کار عموماً هغه چا ته سپارل کېده چې په خپل کلي کې تر ټولو زیات مور او مشهور کورنۍ ته منسوب و . د غه مقام په زیاتو سیمو کې وروسته مورثي بڼه غوره کړه . افغانی اداري چې تېکه یې په بوه کو چنيولې کو چني د ولتمن قشر پورې اړه لرله . دوی زیات یو مت د غه کوچني قشرته لا ځان رانږدې کړې ، تر څو وکولای شي د دوي په مرسته د خلکو څخه مالیات راټول کړي

هغه څوك چې د پټېل په صفت ټاکل کېده ، نه یوازې دولتي کارونه یې اجرا کول ، بلکه د ځانګړي مرېښت لپاره یې هم ښه لاره اواروله ' پټېلانو د ما لیاتو د ژوند بارد خپل کلي او شاوخوا سیمو د ټولو غریبو خلکو په اوږو اچوه .

څرنګه چې په صوبو کې د حاکمانو مقرر ی یوازې او یوازې د پادشاه په اراده پورې تړلې وې ، نو لدې کبله حاکمانو هیڅکله د افکرنه شو کولای چې څو مره وخت به خپلو صوبو کې پاتې شي . له بلې خوا نه ددې لپاره چې حاکمان په صوبو کې ریښې ټینګې نکړي ، نو پادشاه د یر وخت په یوه صوبه کې نه پرېښود . (د مثال په توګه د شاه زمان سلطنت په موده کې چې ۷ کاله یې دوام وکړ ، یوازې په جلال ابا د کې پنځه حاکمان مقرر شول (۱۳). د صو به د ا را نود غه ر ا ز بد لو ن

---

13— G. H. Mac Gregor, A geographical notice ofthe valley of Jullalabad, "Journal of the Asiatic society of Bengal" Vol. XIII, Pt, 11, 1844, P. 878

افنسټون لیکي : د غازیخان دیرې ولایت له دې څخه رټ په زحمت کې دي

دوی دیته تشویقول چې خپلی صوبې ته د رسیدو سره سم د خپل خان د پښت په باره کې له هر څه اول سوچ وکړی .

دحاکمانو په ډله کې د کشمیر صوبه دار حاجی کریمداد خان له تیولوژیات بې رحمه و. کریمداد خان په خپل سرخلك وژل او ددوی جایدادونه یې لوټول. دحاجی کریمداد خان جانشین آزاد خان د کشمیر تاریخ لیکونکو په قول «خلك د مرغانو پشان ستول» (۱۴). همداوجه وه چې د کشمیر صوبې اوسیدونکو هغه ته د(ظالم خان) نوم ورکړ (۱۵).

څرنګه چې آزاد خان د شورش او ګډوډی نه ویریده نو له همدی سببه یې د کشمیر صوبې اصلی اوسیدونکو ته دا اجازه نه ورکوله چې په ښار او د هغه شاو خوا کې څوك د ځان سره وسله وګرځوی. ولایتی اداری هم عیناً د مرکزی اداروپشان وی. په هر ولایت کې اوېږې شعبی د قوي مامورینو په لاس کې وی. د غه مامورین اګرچې د حاکم او صوبه دار تابع و ولې د دوی مقرری د مرکز نه اجرا کیده په ولایتونو کې کوچنی مامورین پخپله حاکم او صوبه دار ټاکل، په ولایتونو کې لوی او مهم مامورین چې د غتو ځانګو په سر کې ولاړو د غه لاندی کسان وو: «دیوان» یا «مستوفی» په ولایت کې مالی کارونه اجرا کول او په عین وخت کې د صوبه دار او حاکم په مالکی کارونو کې مرستیال هم ګڼل کیده (۱۶).

«امیرلشکر» یا «فوجدار» د هغو منظمو پوځې تولګیو قوماندانی په غاړه وه چې په

---

14— D. J. F. Newall, A sketch of the Mahomedan History of Cashmere jounal of the Asiatic society of Bengal", Vol. XXIII, 1854, P. 449).

(۱۵) دغه ابو ونکی مستبداور بې ووبکی معنی ورکوی ددې موضوع لپاره دمثال په ډول دغه لاندی کتاب وګوری :

ولایت کې اچول شوی و. په ولایتونو کې پوځي قوماندانان هغه کسان وو چې حاکمانو او صوبه دارانو د حکومت په ټینګولو کې دوی ته د مهمې سکې په سترګه کتل. که فرضاً د کومې صوبې حاکم د راني سردار تاکل کېده نو د پوځ قوماندانې هم هغه ته ورسپارل کېده. په ولایت کې د پوځ لوې قوماندان ته کله کله «سپاسالار» هم ویل کېده والی د غسې حالات ډېر لږ و «مدیر ګمرك» د غه ځانګه په هر ولایت کې موجوده وه او ګمرك کې چارې ور په غاړه وې «مامور خلیصه جات» د خلیصو ځمکو څارنه او اداره کوله، په پورتنیو څانګو برسېره په زیاتره ولایتونو کې د چوني اسیران هم موجود وچې هغوی ته «کلاداران» ویل کېده، د پولیسو امر یې میرشاب یا (میرېز ین) باله. هغه کسان چې د اوبو لګولو څېکو څارنه یې کوله، هغوی ته «میرابان» ویل کېدل. ددې ټولو نه پرته په ولایت کې قاضي هم و، چې د ملکي چارو او دعو وفیصله یې کوله.

د امپراتورۍ په مرکزي اداره او هغه ولایتونو کې چې د هندوستان لوید یځ پلوته پراته وو، او همدا ډول په کوچنیو سیمو کې دورو او متوسطو مامورانو اساسي برخه د تاجکو او «قزلباشانو» څخه تشکیل شوې وه. په ولایتونو او صوبه دارایو کې دربارونه هم د «قزلبا شانو» مامورینو څخه ډک و.

د درانیا نوا مپراتورۍ لوید یځې برخې په ورو سیمو کې چې په ولایتونو کې ور تللې، او د صوبه دارانو حکم لاندې وې، د هغو سیمو او سیمو نکي تاجکان وو. ددې سیمو او سیمونکو په خپل منځ کې د تاکنې په اساس یو مشرد «کدخدا» په نوم مره تاکه، اوله تاکنې نه وروسته د صوبه دار او حاکم له خوا منل کېده. «کدخدا» د خپلو کلیو څخه مالیه ټولوله، او د ضرورت په وخت کې یې خلك بیګار، عسکري خدمت او بیل اجتماعي کار لپاره راغوښتل

دخپل خدمت په مقابل کې لوی ملکي منصب دارانوته دجاګيرنه علاوه په کال کې یوبادوه واره ددولتي خزانې څخه یوه اندازه پیسې ورکول کیدې . کوچنیو مامورینو ته دمعاش په مقابل کې یوه اندازه پیسې اوجنس ورکول کیده . دکلیو مشران دا دارې وظیفوله پلوه په ټیټه رتبه کې راتلل ، اوزیاتره دد وی په سرسته مالیه ټولیده . نودوی ته دخپل خدمت په عوض کې یو وړه غونډې توته ځمکه د «انعام» په نوم سره ورکول کیده . ترکومه پورې چې زمونږ سره اسناد شته دی ، دهغوې له مخې ویلای شوچې حتی دلو یو ملکي مامورینومعاش چندان زیات نه و .

ددوی زیات شمیر کسانو په «سوغاتونو» اوبډو سره ژوند کاوه (۱۸) .

په هغو صوبو کې چې اومري گروپ ته منسوب دی ، دهغو سیمو خلکو څخه دمالیې ټولول اونظم ساتل دقبیلوی خانانو کارو . که چیرې په دغو ولایتونو کې دقبایلو قوت زیات و . نوپه هغه صورت کې حاکم مجبوریده ، چې دټولو کارونو اداره او حل کې یوازې خانانو ته مخ راواړوی ، که قبایل کمزوري غونډی و، نودحاکم امرونه مخامخ دقبائیلو مشرانو ته ورتلل .

دغه رویه نه یوازې دپښتنو قبائیلو سره کیده ، بلکه د هزاره گانو سره هم دا ډول معامله روانه وه ، کوم چې دبامیانو اوکندهار ولایتونو حاکما نوا دا رې لاندې و ، اویا هغه ایماق چې دهرات ولایت حاکم « جانشین » حکومت باندې کاوه .

دایماقو مشرانو دخپلو قبیلو څخه مالیه ټولوله اوهم یې په خپل مصرف سره عسکري ټولګې ساتل . دوی دا قدرت هم درلود ، چې دخپلو قبایلو غړیو با نـــدې محکمه جوړه کړي ، او ددوی دسرګټاو ژوند مسا له حل کړي (۱۹) . ددوی کارونه

اگرچې دباداشاه په نوم سره ترسره کیدل ، ولې خبره داده چې ددوی آزادی تردې اندازې پوری وه، چې هېڅ دا کوښښ نه کاوه ، ددوی د قبایلو په اداره او داخلی چارو کې مداخله وکړی .

دهزارو څخه د خپلو خانانو په وسیله مالیه تراول کیده ، ددوی خانانو نه غوښتل چې حاکمان ددوی په چارو او داخلي کارونو کې مداخله وکړی (۲۰).

د هندوستان په هغو سیمو کې چې احمدشاه درانی فتح کړی وی ، داداري پخوانی تجربه او پوهه د خپلو گټو په نفع هلته استعمال کړی . دی مفتوحه سیمو فیوډالی قشر دافغانی مقامونو سره په همکاری کې برخه واخیسته . همدا سبب و، چې په مفتوحه برخو کې نه یوازې واړه او متوسط ماموران ، بلکه د هغو صوبو صوبداران اکثره په خپلو پخوانو ځایونو پاتې شول.

کله کله د کنترول لپاره دنیول شویو صوبو په مرکزونو کې دافغانی قواووټولگی ددې لپاره واچول شول ، چې د هغو سیمو حمایه وکړي . افغانی مقامونو دزړه له کومې غوښتل چې د هندوستان په شمال لویدیځ برخو کې مذهبی قبیلوي اختلافونه لا ټینگ کړي ، ترڅو وکولای شی ، هندي سوداگران ، سودخواره او هندوستانی فیوډالان دځان طرفدار کړي .

همدا علت و ، چې دامپراتوری په صوبو کې د «دیوان» وظیفه هندوانو ته سپارل کیده . دمثال په ډول سیکیجون په کشمیر او پنجاب کې . کله کله

---

20— Henry C. Rawlinson Report on the Dooraneetribes dated 19th April 1841 ("Central Asia A contribution,

د هندوانو فیوډالانو او سکانو سردارانو ته دتولي‌صوبې اداره سپارل کیده. دنمونې په توګه په سرهند کې الهسنګ اوعمرسنګ په لاهور کې رنجیت‌سنګ ته دشمال‌اوید یځ هندوستان په ټول شویوولایتو کې ښتنو فیوډالانو لپاره ترهرڅه دمخه د استثما ر منابعو زښت ډیر ارزښت درلود. د سر هند شور شونو د ډهلي حوا د ثو (۲۱) اوداسې حالاتو پخپله دا ښود له چې پښتون باچا احمد شاه د راني نه غوښتل، چې د خلکو لوېې تو دې د ده په مقابل کې متحد ې شي دده توجه دې‌خواته چې‌څه‌ډول دشرایطو څخه اعظمي استفاده وکړ ي، تر څو وکړ ای شي چې‌دخپلو منظمو پوځونولپاره ضروري وسایل برابر کړي. داحمد شاه منظمو پوځونو په سلسله کې‌له هرڅه دمخه‌دده ګارډ ډیر مهم و، ځکه همدغه‌ګارډ په هندوستان کې دراني باچا د قدرت ساتلو لپاره یوازینۍ مهمه تکیه ګڼل کیده. دامپراتور ی نه‌د باندې اوهمدا ډول دیوه ولایت څخه‌بل‌ته‌دخارجیانو‌پشان‌ځایې اوسیدونکو ته هم دتګ اوراتګ اجازه نه‌ورکول کیده. سیاحان او سو داګر ا ن مجبور وو، ځان‌سره مخصوص سندونه ولري، چې په‌هغه‌سند کې د د وی خط السیر دنو کرانوشمیر، دبارګڼراند ازه‌اوداسې نورتول ښکې لیکل شوي وي. دغه‌اسنادسیاحانو اوسوداګرانوته‌دحاکمانواوپادمحلونوناظمانوله‌خوا‌ورکول کیدل اوبیا په تیا کلوځایونو کې‌بد لیدل (۲۲). ددوهم ګروپ ولا یتونو حاکمانو یعنې‌دتابعو سردا ریو خا نانو

---

۲۱ — سلطان محمد خان، تاریخ سلطاني، ۱۳۶ مخ.

دشاهي تاج پوشیو په وخت کې پیالهسره فرمانونه اخستل ، چې دهغو په اساس دخپلو سردارېو حاکمانو په صفت له سره تایید په ل . ددوی دمرګ نه وروسته، معمولاً له زامنو څخه یو دربارته حاضرېده ، او هلته شاهي فرمان چې طلا یې لمونې او کله کله توره او ډال (داټول په فرمان کې یاد یدل)(۲۳)، هم ورسره ملګری کول او نوي سردار ته یې دسوغات په توګه ورکول . دغه سوغات دامعنی لرله ، چې مقابل طرف تابع او دضرورت په وخت کې به د شاهي فرمان مطابق دربارته حاضرېږي ، او په جنګ کې به برخه اخلي . دهمدغې دورې په پای کې په کومه باندې چې موږ خبرې کوو، ددرانی پادشاهانو دضعف په نتیجه کې دتابع سردارېو حاکمانو نورنو مرکز ته داحترام وړاندې کولو لپاره نه راتلل، اوپه عوض کې دپادشاه فرمان سوغاتاونو رشیانو سره یوځای دکوم یوه قاصد په لاس دلته رالیږل کیدل (۲۴) .

دسردار یوحاکمانوخپلوسیمو کې مطلقه داخلي آزادي لرله. دمرکزي حکومت په مقابل کې مجبور وو ، چې شاهي پوځ ته دعسکرو ټولګی راولېږي، اوپه ځینو حالاتو کې دخاص ترون له مخې یې پایتخت ته باج ورکاوه . د دې له پاره چې تابع سرداران دمرکزي حکومت په مقابل کې بغاوت ته لاس پورته نه کړي، نومرکزي حکومت دسردارانو او امیرانو څخه یوځوک دیرغمل په صفت ځان سره ساتل، اوپه دې

---

۲۳—دسیستان دکیاني کورنۍ حاکمانو په باره کې دن ،و،خانیکوف ، د ك . ریسترپه کتاب کې (ایران، سان پترزبورګ ۱۸۷۴ ، ۳۰۷—۳۰۸ مخونه وګورئ).

پرغملو کې زیاتره دمقابل پلونه دسردار پو زوی هم شاملیده .

تابعو سردارانو کوښښ کاوه، چې دمرکزي حکومت اعتماد په خپل ځان باندې وساتي . ددې لپاره یې وخت په وخت پاچاته درانه سوغاتونه استول ، دمثال په توګه دبلوچستان بیګلر بیګ ناصر خان ،احمد شاه درانی ته اوښان ، آسونه، اوسرپونه استول (۲۵) . په ۱۲۲۰ هجري کال کې ( ۱۸۰۵ عیسوي ) د شاه شجاع د پاد شاه کید و کا لیزې په مناسب د خلم حاکم قلیچ علی خان پاد شاه ته سوغات په توګه اوښان ، اسونه په ما لونو بارکړل . پدغه مالونو کې روسی ، ترکستانی ،چینایي توکران پوستکي اوتورې هم شاملې وې(۲۶) .

پدغو سردار یو کې ،لکه: خراسان ،بلوچستان ، سند ، بهاول پوراونورو باندې دپښتنو باچاهانو قوانین تر کې په ټکي نه تطبیقېدل. پدې معنی چې دغو پورتنیو سردار یو ځا نګړي ا د اري تشکیل ،پوځی سیستم اودولتي ارګانونه لرل . په همدې سبب سونږ دلته نه غواړ ود پښتنو امپراتو رۍ کې دشاملو خود مختاروسرداریوپه اداري تشکیل اوداخلي جوړښت باندې خبرې و کړ و .

دپاچا اوسردار یوتر منځ متقابله روابط دمخصوصوتړونونو په اساس کنترولیدل. قراردادونو کې د پا چا اوتابعوسردار یوترمنځ دتابعیت تول شرطونه په ښکاره ډول ښودل کیدل .ددې خبرې لپاره په مثال د ۱۷۵۸ کال قر ارداد په ګو ته کولای شو چې داحمدشاه دراني اوناصر خان بلو څ ترمنځ امضاء شوي و.

دپورتني تړون له مخې بلوچستان داحمدشاه دراني اودده داولادې د پاچاهی تابع ګڼل کیده . په قانونی لحاظ هم احمدشاه دراني د هغه ځای پاچا ګڼل کیده .

په بلوچستان کې خطبه دده په نوم لوستل کیده، اوسکه هم د احمد شاه په نوم وهل کیده .

ناصرخان مجبورو، چې پښتنو ته شپږزره سپاره عسکر راولیږي دا په هغه وخت کی چې احمدشاه کوم ځای ته پوځ کشي کوله. کله چې د سهروتولګی شاهی کمپ ته راورسیده، نو هغه وخت ناصرخان ته د عسکرو لپاره پوځی مهمات او د دوی د معاشونو نیمایی برخه ور کول کېده. د لارې مصرفونه د ناصرخان په غاړه وو. په قرار داد کې دا هم ښوول شوی و، چې که فرضاً په افغانستان کې دا خلې جنګونه شروع شوي وای. نو په هغه صورت کې ناصرخان اود ده زامن مجبو رندوو، چې باچا ته مرسته ورکړي (۲۷) . د بلوچستان بېګلر بېګي ددې ترون له مخې د هر ډول باج ور کولو نه خلاص و .

د ۱۷۵۸ کال ترون د دوا ړولو خوا امضاشو. د ترون امضا نه وروسته ناصرخان ته دوپارني جامې ور کړای شوې او هم د بېګلر بېګي لقب ورپاتې شو د غه لقب. ناصرخان د نادرشاه افشار په وخت کې هم درلود. ناصر خان ته د عسکری خدمتونو په مقابل کې د پښتون

---

۲۷ــ فیض محمد ، سراج التواریخ ، لومړی توک ، ۵۷ مخ .

J. P. ferrier, History of the Afghans, P. 85; Henry pottinger, Travels in Belloochistan and sinde, accompanied by a geographical and Historical Account of those countries, London, 1816, P. 282-283.

په ۱۸۱۰ کال کې شاه محمود د محمود خان (د ناصرخان زوی) څخه وغوښتل، چې د خپل رقیب شاه شجاع په مقابل کې هغه سره پوځی مرسته وکړي. محمودخان په ځواب کې ورته

بادشاه له خوا دا اجازه هم ورکړای شوه چې دوه یاړ لپاره په پټکی کې دوې په الماسو مرصعې
پرې هم وتومبې او د سوغات په توګه د دغارو غېړو لوا جا زه هم ورکړ شوه .

ترڅو چې احمدشاه درانی ژوندی و تر هغه پورې ناصرخان د هورتني ترون شرطونه
تول منل. د ۱۷۶۱ـ۶۲، ۱۷۶۴ـ۱۷۶۵ کلونو په جګړو کې چې احمدشاه
هندوستان ته پوځ کشي وکړه او په ۱۷۶۸ـ۱۷۶۹ کې خراسان ته ولاړ پدې تولو
جنګونو کې ناصرخان فعا له برخه واخیسته. کومه میرانه چې دخرا سان په پوځ کې
ناصرخان ښوولې وه د هغې په بدل کې احمدشاه درانی دشال (کویټه) آباده دره په
جایګیر کې دانعام په توګه ورکړه او دهندوستان په لښکرو کې دمیراني په نوم هارن
اودا چېل (غازی خان دیری سره نږدې برخې) دجایګیر په نوم ورکړې. ددې په څنګ
کې ناصرخان دا په ځان ومنله، چې دشپږزرو سپا رو علاوه نورز کسه پلې عسکر هم شاهی
پوځ ته راولیږی چې هغه په کشمیر کې وظیفه اجرا کړی (۲۸) .

لکه څنګه چې پخوا وویل شول ناصرخان هر کال خپل پښتون احمد شاه درانی ته
قیمتي سوغاتونه رالیږل. پدې سوغاتونو کې آسونه، اوښا ن اوغلا مان هم شامل وو.
څنګه چې په دربار کې وزیرشاه ولی خان بامیزی هم د ناصرخان زیا ته طرفداری اوحمایه
کوله نو هغه هم په خپل وار سره دناصرخا ن له خوا ګرانې تحفې لاس ته کولې.
(۲۹) آما د احمد شاه د مرګ نه ور وسته د پښتنو یا د شا ها نو نفـو ذ
په بلوچستا ن کې کمیده. دشال په توګه د احمدشاه د رانی له مرګ نه

---

28— M. Elphinstone, An account.., P. 496.

29— R. Leech, Brief History of Kelat..., P. 490—491.
Charles Masson, Narrative, of various Journeys in
Baloochistan, Afghanistan, and the Panjab including a resid-

وروسته ناصرخان پخپله حتی یوځلې د تیمورشاه په وخت کې دربارته حاضر نه شو. دتیمورشاه په وخت کې دربار کې دناصرخان نماینده سلطان محمدمرادخان و، چې پرله پسې دلته اوسیده. دتیمورشاه په وخت کې دناصرخان زوی محمود خان اګرچې د ۱۷۵۸ کال تړون شرطونه منل، ولې په واقعیت کې د پښتنو پادشاهانو او د بلوچستان پرګار بیګه تر منځ روابط د تابعیت د حاکمیت او محکومیت په اساس نه وو.

دخراسان امیران چې د پښتنو پادشاهانو تابع وو، هم مجبوروو چې شاهي پوځ ته د عسکرو ټولګی راولیږي. داکار اګرچې دخراسان امیرانو کاوه، ولې په خوښی سره نه (۳۰). د دې نه پرته دخراسان امیران مجبور وو، چې پښتنو ته یو اندازه پیسې او مال دباج په نوم راولیږي. دمثال په ډول د تبس امیر هرکال پښتون پادشاه ته د پولک روپیو په قیمت مختلف شیان رالستول (۳۱).

په همدې اساس باندې د هیستان، پهاول پوراوسندھا کمانو د مرکز سره خپل روابط ساتل، که په تابعه وسرداریو کې داخلي جنګونه په قدرت او ګټه وسې راپورته کیدل، نودرانی پاچاهانو پوازې هغه وخت مداخله کوله، چې د دوی ګټوته پکې

---

۳۰ — د روسیې دخارجي سیاست آرشیف، «د پښتنو اسناد» ۱۷۶۳–۱۷۶۶ کالونه، ۱۰ – ۱۰م پاڼې، (وړاندې د روسیې خارجي سیاست آرشیف ته مراجعه وکړی ع):

«احمد شاه هغه ته علی مردان خان راولیږه» د تبس حکمران غوښتل چې عسکر ورولیږي، «اما هغه د دې غوښتنې څخه انکاروکړ، او شاه خوا یې د یر زیات ترکمن او کوردیان ځان ته دښمنان پیدا کړل»...

احمدشاه «د کندهار څخه شا هرخ ته کورد پرراوامیره، چې د مشهد څخه عسکر

تاوان رسیده . دوی خپل تاوان پدې کې لیده، چې تابع سرداري یې له لاسه ورکړي.
دمثال په توګه کله چې په خراسان کې د شاهرخ په‌مقابل کې اوپا کله چې
په‌سند کې دتالپوریانو او کلهوریانو ترمنځ شورشونه راجګ شول، نودرانی بادشاهانو
مداخله ونکړه .

دنولسمې پېړۍ په‌اوا یلو کې چې مرکزي حکومت مخ په کمزورتیاروان و، نود
ختیځ افغانستان په غرنیو سیمو کې دکوچنیو برخوهاکمان هم په نیمه تابع
سردار یو سره بدل شول . ددې نه‌علاوه‌مرکزي حکومت ته‌دباج ورکول او‌پادشاهی
پوځ ته دعسکرو تولګی رااستول، ورو وروقطع کیدل . دوی یعنې تابعوسردار یو
په خپلو سیمو کې تول پرابلمونه په خپله حل کول . دکوهستان تاجکو
«سردار یو» (نجراب، پنجشیراو غوربند) په هکله‌الفنستون لیکی، چې „ دوی‌تقریباً
آزادې وې او پښتنو پادشاهانوبه سختی‌سره دوی‌نه عسکراو مالیه اخستل» (۳۲).
هغه ولایتونه چې په‌دریم ګروپ کې راتلل حاکمان ئې دپادشاه له خوا ټاکل
کیدل ،(ددغو سیمو حاکمان معمولاً ددرانیانو سرد ارانو څخه وو، ولی دومره پایه
وویل شی چې دغه حاکمان زیاتره دلویو خانانو کورنۍ‌څخه ټاکل کیده) .ولی
دغه حاکمان په خپل ولایت کې هیڅکله نه اوسیدل . د هغې سیمې « اداره »
یې داسې کوله چې په کال کې یوځل به‌خپله‌حاکم اویا دده مرستیال دعسکروټولګی
سره یوځای خپلې صوبې ته روانیده ، چې دهغې سیمې څخه مالیه راټوله کړی.
په نورو‌ټاتی و ختونو کې دهغه ولایت« اداره» دقبایلي خانانو په لاس کې وه.
په هزاره‌جاتو کې دولایت حاکمي معمولاً د هزاره وو سردارانو څخه یا نفوذ

قبایلو کې حد او اندازه نه درلوده. د هزاره ګانو ځینې خانان، لکه چې د مخه وویل شول د بامیانو او کندهار ځا کما نو ته تابع و.

په هغه سیمو کې چې د پښتنو قبایل اوسېدل، عملاً ټول قدرت د هغو پښتنو خانانو په لاس کې ؤ چې دم. غبار په قول «حکومت او خلکو ترمنځ د حایل په توګه واقع وو» (۳۴).

د پښتنو قبایلو قبیلوي جوړښت ځانګړی شکل درلود او د دوی اقتصادي، اداري او سیاسي سیستم په اساسي چوکاټ کې پروت و، چې د پښتنو اساسي تودې په هغه کې کلپ شوې وې. د دوی په منځ کې داوړو او ځمکې وېش، جیره بندي، د مالیو اخستل عسکري تېرول او داسې نور ټول د قبیلو په سر کېدل. د پښتنو هرې قبیلې ځانته داستو ګنې سیمه، د مال څرولو ځایونه او کلکې کلا وې درلې، چې په غو محکمو کلا وو کې د قبایلو خانان او ملکان اوسېدل (۳۵). د پښتنو د قبیلوي ټولنې پرمختګ ځانګړی صفت

---

۳۴ — غبار، احمدشاه بابای افغان، ۱۳۴ — ۱۳۰ مخونه.

۳۵ — د دې «کلا» په باره کې مونږ ته ډول ډول لیکنې را پاتې دي، مثلاً د قاسم خان کلا چې په دبو کې واقع ده، (د تیمور شاه په وخت کې د پنجکوړې یوسفزیو سر دار و) او عمومي مساحت یې ۱۰۶ زرو یارد وځخه زیات و (یو یارد ۹۱ سانتي متره کېږي)، ۶ برجونه یې درلودل د غه کلا د خان او د ده د کورنۍ اوسېدو ځای و.

H. G. Raverty, Notes on Afghanistan and partof Bluchistan: Geographical, ethnogr aphical, and historical extracted from the writings of little known Afghan and Tajik historians, Geographers and geneal ogist, London, 1880, P. 166—167

داو، چې داتلسمې پېړ ی په دوهمه نیمائي کې طبقاتي تضادونو په عمومي دول د« ټولنې نه د باندې » انکشاف کاوه، دپښتنو قبایلو فوقاني قشر کوښښ داو، چې قبیلوي ژوند دپښتنو په منځ کې وساتي نه داچې هغه له منځه یوسي . یوازې دنونسمې صد ی په سرکې کله چې دپښتنو قبیلوي ټولنو په منځ کې تر زیاتې اندازې پورې دفیوډالي استثمار پر مختګ لپاره امکانات مخ په کمید و شول ، نو داوخت خانانو داکوښښ راشروع کړ، چې دغه ټولنې چې پرون یې محکمتیا غوښته ، نن یې برعکس دخان تابع کړي .

هغه وخت چې دپښتنو پوځي کامیابۍ هرپلو ته رواني وې ، او د قبایلو خانانوته یې خامخا ګټه رسیده ، ددوی قوت یې لازیاتو ه ، نوهمدی پوځي فتوحاتو دقبایلو په منځ کې اجتماعي اواقتصادي نابرابرتیا لا پسې زیاته کړ ه . د غې نابرابرتیا دوی سره مرسته وکړه ، چې په فتوحاتو کې نیول شوې و لجه د ټولنې په افرادو باندې دوسلې دماهیت په اساس ویشل کیده . پدې معنی که د وسلې ماهیت لوړو ، هغه وسله وال ته دولجې ښه اوزیاته برخه ورکول کیده ( ۳۶ ) .
دځمکې سره په څنګ کې داوبوسرچینا بع هم نیول کیدلې ،دا ځکه چې کرهنه بې اوبو ناممکنه وه ، دولجې په نتیجه کې میشته شوې خلک متضرر کیدل ، ددې کا ر سره تولیدي روابط هغه دول چې دقبایلو په منځ کې وو ، پوشي نه شو ل ، بلکه کلي فرق یې وکړ . د پښتنو قبایلو پا سنې قشر په فیوډالانو، زمین دارانو بد لشو. دنیول شویو سیمو اصلي اوسیدونکي په همسایه بزګرانو ( هغه بزګران چې خپل وا ك نلري) ، واوښتل . همسایه بزګرانو دفیوډالانو زمین دارانو ځمکې په اجاره کرلې. دقبایلو خانانو قدرت دهمسایه بزګرانو هغه جمعیتونه (۳۷) و و ، چې شمیر یې

کله کله څو زرو کسانو ته رسیده . (۳۸) . هرڅومره چې دقبایلو خانانو څخه لوی زمین داران ، فیوډالان جوړیدل ، په هغه اندازه دقبایلو د ننه طبقاتی نابرابر تیا مخ په زیاتید و وه. د دراني باد شاهانو په عصر کې اگر چې د غه نابرابرتیا «دې اندازې ته نه وه رسیدلې، چې خان دې و کولای شي په خپل سردخپلی قبیلې غړیو څخه مالیه ټوله کړي.ولې پدې کې شك نشته ،چې همد غې دورې د «تضادونو په شدت اودنا برابر تیا په محکموالی کې» (۳۹) قوي برخه واخیسته . پدې ترتیب ویلای شو چې د خان قدرت دوه اړخیز صفتونه لرل ، هغه داچې که خان دخپلې قبیلې غړیو په مقابل کې محدود قدرت درلود . ،اوپه زیاتره وختونو کې دخان قدرت تش په نوم ؤ همدغه خان د همسایه بزګرانو لپاره نا محد ود قدرت درلود .دهمسایه بزګرانو استثمار چې دخان په لاس کیده ،دانه یوازې دده د ټولې قبیلې دګټو په غرض کیده ، بلکه د خپلو ځا نګړو منافعو ساتنه یې تر ټولو اول په نظر کې نیوله .له بلې خوا څنګه چې دپښتنو قبایلو ټولو غړیو ځمکه نه درله،نو د خپلې قبیلې یوه برخه دهمسایه بزګرانو حا لت ته راغله .داکار ددې سبب شو چې دپښتنو قبایل په دغه دوره کې چې په هغې با ندې موږ غږیږو، په اجتماعی لحاظ پاتې نه شول بلکه سره ګډ شو ل .

دقبایلو خانانو قدرت ټینګیدو لپا ره څو شیانو مرسته کوله :اول داچې دخانانو

---

۳۸ — د فتح خان په ټولګی کې چې دیوسفزیو له سردارانو څخه و. ۰ ۰ ۵ ۱ کسه پیاده او ۰ ۰ ۲ (دوسوه) سپاره شامل وه. دپاینده خان تر کلاۍ ټولګیو مرسته کې دوه زره پلي او پنځه سوه سپاره عسکر شامل وو.

قدرت سره قبیلوي نظام کلکې عنعنې له خوا پوره کومک کیده. په قبیلوي نظام کې دقبیلې د مشر قدرت ډېر زیات و . دوهم د خانانو قدرت لدې درکه ټینګیده چې ددوی په لاس کې پوځي قدرت هم موجود و. دوی خپلې وسله والې دستې لرلې لکه څنګه چې جوته ده دوی اولسي پوځي ټولګیو ته ا سرونه ور کول، اوحتی زیاتره خانانو په خپل څنګ کې قضایي قوه هم ساتله (۳۰). (دا هم بایدله یاده ونه ایستل شي، چې ددعوو دحل په باره کې لوی رول جرګې په غاړه اخیستی و). ددې نه پرته دخانانو نفوذ ددوی دقدرت محکمتیا تر ډېرې اندازې پورې تړلې و. چې دوی دبادشاه او مرکزي حکومت تابع پاتې کېدل، او په نتیجه کې د درانیانو امپراتوری دولتي ماشینې، فیودالي قبیلوي ممتاز قشر په شمېر کې حسابیدل .

تر کومه پورې چې معلومه ده، د پښتنو قبیلوي مشرانو ته مستمري معاشونه، القاب او اداری پستونه پخوا له څخه هم ور کول کېدل. کله چې د پښتنو مستقل آزاد دولت لانه و تشکیل شوی ددې موضوع د پاره د صفویانو دوره یادو غه وختونه په مثال کېدای شي (۳۱) اما د درانیانو امپراتوری جوړېښت نه وروسته چې پدغه نوی دولتي ماشین کې د پښتنو خانانو د فیودالي ممتازې طبقې په حیث لوړ مقامونه اشغال کړل، او لدې ممتاز موقعیت څخه یې دخپلو قبیلو د ټیټوالي، آزادو غړیو په اسارت کې بې حده استفاده وکړه

---

۳۰ — په ختیځو کې دخان قضایي ارکان په «سرکاري عدالت» یادیده . (محمد حیات خان، حیات افغانی ۳۲۵) .

۳۱ — دسلطان محمد خان درانی کتاب وګوری: تاریخ سلطانی، ۶۲ — ۶۳ مخونه

(۴۲) دا هم باید ووایو چې د ۱۹ پیړۍ په دوهمه نیمایی کې د قبا یلو د ټینګو، آزاد وګړیو د اسارت جریان د خانانو او ملکانو له خوا شروع شو، ولې د غې پروسې «مستقیم» نه بلکه «غیر مستقیم» حالت د رلود .

هیڅ کوم خان یا ملک د قبیلې د مشر په صفت د خپلې قبیلې په وګړیو باندې مالیات نه وضع کول ، ولی هغه مختلف درکونه چې د هغې نه پخوا قبیلې د همسایه وو څخه مالیات یا باج تولاوه ، که پخوا د قبیلې ګډې ذخیرې ته تحویلدلی ، ولی داوخت خانانو خپلو جیبونو ته راکشول (۴۳) .

---

۴۲ ــ الفنستون لیکی، چې د پښتنو تابع قبایل د باچانه زیات خپل خان خبروته غوږ ږدی .

(M. Elphinstone, An account... P. 163, 359.

۴۳ ــ الفنستون لیکی : «زه نه یم خبر چې خان دې د خپلې قبیلې په وګړیو باندې مالیا ت وضع کړ ی او بیا دې هغه په خپل ځان مصرف کیږی .

M. Elphinstone, An account..., P. 165—355;

په همدی ډول دا کتاب وګور ی:

H.W. Bellew, A general report on the yusufzais, in six chapters with am ap, Lahore, 1864, P. 206.

په دې باره کې خټک استثنا و، ځکه چې لا د ۱۶ پیړی د وهمه نیمایی کې د دوی فیوډالی سرداری جوړه شوه د ختکو خان د خپلې قبیلې وګړیو څخه مالیات اخستل. له مالیاتو نه علاوه د حاصلاتو هم کله عشر او کله ربع خان ته ورکول کیده. د دې نه پرته د هر ځاه څخه ۱۰ روپی او د ځمکی هرې ټوټی څخه ۲ – ۳ روپی اخستل کیدی په غرنیوسیمو

خانانو او ملکانو د خپلو همسایه وو څخه د جنګي غنایمو یوه حصه هم اخستله . ( په یوسفزیو کې تر ربعي پورې اخستل کیده ) ، ددې نه پرته هغه مقدار پیسې چې څخواد قبیلې د مشر د حجرې (مهمانخانې) لپاره ذخیره کیدې ، داوخت خان او ملک ځان ته راګرځولې . هغه سوداګران چې د خانانو ځمکو او سیمو څخه تیریدل ، دوی مجبورو و چې د لارې ټکس په نامه یوه اندازه پیسې د هغې سیمې خان یا ملک ته تسلیم کړي . (۳۳) . په هره اندازه چې فیوډالي روابطو انکشاف کاوه ، په هغه اندازه د قبیلو خانان وخت په وخت د قبیلوي مشرانو څخه وتل او په مقابل کې د یوې سیمې او ناحیې واکداران کیدل . د غسې اجتماعي وضعې د غو خانانو او ملکانو ته دا شرایط برابرول چې د بلې قبیلې په غړیو باندې د مالیې وضع کولو حقوق ترلاسه کړي په ډیرو قبایلو کې (د مثال په طور په بنو، مروتو او یوسفزیو کې ) خانانو د مالیاتو نیمایي برخه ځان ته ګرځوله . او په غریزو سیمو کې د لارو او د روساتنه هم د دوی په غاړه وه، دوی د دغو عمومي لارو د ساتنې نه مالیات اخستل او په جنګ کې مجبورو و چې د شاهي پوځ لپاره د ضرورت په وخت کې د عسکرو ټولګی هم وړاندې کړي پدې ترتیب سره د خانانو په لاس کې نه یوازې ملکي ، بلکه عسکري قدرت هم تمرکز کاوه . د دغو پورتنیو وظیفو اجرا کولو په مقابل کې خانانوته جایګیر ونه ورکول کیدل ، او دوی د پادشاه تابع کیدل ، او د هغه خدمت یې باید کړی وای .

په هغو قبایلو کې چې اجتماعي روابط نسبتاً پرمخ تللي وو، هلته خانان د قبیلوي نژادي خصلت په ځای په سیمه ایزو خانانو بدل شوي او په تدریجي صورت خان او خاني د ځمکو د تعمیم له مخې شروع کیدی . د مثال په توګه په خټکو کې چې سرداري (خاني)

(خانی) تشکیل شوې وه، هغه صافه د سیمه ییزه واحد په صورت وه او مختلف خیلونه په کې راتلل.

دقبیلې خان پخپله د بادشاه له خوا ټاکل کیده، ولې پدې انتصاب کې دهغه حاکم (صوبه دار) نظریه هم شرط وه، په کوم ولایت کې چې هغه قبیله میشته وه. د (مثال په ډول په ۱۷۴۷ کال کې احمد شاه درانی د پیښور سیمې دا پرید یوقبیلې مشر محمد هاشم خان اپریدی وټاکه دختکو قبیلې په سر کې احمد شاه درانی خوشحال خان (شهید) اوسعاد تمند خان ختک مقرر کړل (۳۵). همدا ډول مقرری په نورو قبایلو کې هم وشوې، کوم چې د احمدشاه درانی حکومت ته تابع و. په ټولو قبایلو کې دخانی اجاره یوشرط هم داو چې کاندید باید دخپلې قبیلې دخان خیلو غړی وای. دخانی په چوکی با ندې دمقررو لو اوپرطرف کولو حق تش د پادشاه حق و. خان ته د ټاکل کیدونه وروسته شاهی فرمان ورکول کیده او په ځنګ کې د« سلطان »، «سرکرده» او کله کله « ملك » القاب هم ورسره وو (۳۶). ځنګه چې دخانی مقام اوقدرت مادي ګټه هم لرله نو پدې اساس ددې مقام ګټلو لپاره کاندید انووزیرانو او په دربار کې بانفوذو کسانو ته رشوتونه ورکول، او په دې مقام باندې د کاند یدانو ترمنځ سخته مبارزه روانه وه. وزیرانو او درباریانو په خپل وار سره کوښښ کاوه، چې خپل مطلوب کاندید مخ ته کړی، او په پادشاه باندې دهغه کاندید منظوري کړی (۳۷). دخانی مقام عموماً

---

۳۵ ـ محمد حیات خان، حیات افغانی، ۳۲۴ مخ.

۳۶ ـ دشاه زمان اوشاه شجاع فرمانونه وګورئ: کابل مجله ۱۳۱۷ هجری کال ۱۳ (۸۷) ګڼه او Jadunath sarkar Fall of the Mughal empire Vol. I, 1949, P. 118 کتاب هم وګورئ.

په میراثي ډول یو بل ته ورکول کیده . پدې معنی چې د پلار په ځای زوی باید خان ټاکل شوی وای . د مثال په توګه د کاکړو په قبیله کې د خانی مقام په دایمي ډول د باکرخان اولادې ته ورسپارل کیده ، او باکرخان د احمدشاه دراني په وخت کې د ده له خوا د کاکړو خان ټاکل شوی و (۴۸).

په ځینو قبایلو کې داسې رواج و چې د قبیلې د خان نه علاوه حتی د «خیل» مشر هم د پادشاه له خوا ټاکل کیده . د «خیل» رهبر د هغو کسانو څخه انتخابیده چې په «خیل» کې «خان خیلو» ته منسوبیده . تیمورشاه سردار پاینده خان د حاجي جمال خان زوی د بارکزیانو قبیلې مشروټاکه (۵۰). کله چې سردار پاینده خان د شاه زمان په لاس ووژل شو ، نو د بارکزیانو مشر فتح خان مقرر شو . پدی ترتیب سره ویلای شو ، چې د بارکزیانو (خیل) سر کې هر وخت د یوې کورنی خلک ټاکل کیدل ، حتی چې فتح خان د شا محمود خان په امر ړوند کړای شو تر هغه وروسته هم د بارکزیانو مشري د فتح خان کوم یو ورور نورالدین خان ته پیشنهاد شوه .

د قبیلې د خیلونو په سر کې «خانان» یا «ملکان» وو . د وی کله د قبیلې «خیل» له خوا انتخابیدل ، ولی د «خیل» مشر باید د قبیلې خان تائید کړی وای . داسې عنعنه هم موجوده وه چې د «خیل» خان مستقیماً د قبیلې د مشر له خوا ټاکل کیده (۵۰).

پدې ترتیب سره اګرچې د قبایلو داخلي ژوند لا تراوسه هم ترزیاته حده پورې

---

۴۸ – «بلوچستان» ، کلکته ، ۱۹۰۸ ، ۱۰۲ مخ .

۴۹ – په اول کې د بارکزیانو مشر ، د پاینده خان ورور رحیم دل خان و ، ولی تیمورشاه هغه لدې مقام نه برطرف کړ ، ځکه چې د بارکزیانو ځینو سردارانو

دقبیلوي حقوقو په چوکاټ کې محدودوو ، ولې دقبایلو خانانو کوښښ کاوه دقدرت زیاته برخه په لاس کې واخلي ، اودقبیلوي ژوند بقایا وساتي . هر څومره چې ددرانیانو امپراتورۍ قوت سخ په زوال روان ؤ ، په هغه اندازه لویو خانانو په خپلو سیمو کې تقرېباً خپلواکي او ازاد احساسول . د دې جملې څخه یوهم دتیمورشاه د سلطنت په وروستیو کالونو کې منصورعلي خان ؤ ، چې دباجوړ حاکم واو د باجوړ کې دترکلانو قبیله اوسیده . ددې سیمې حاکم چې د«باز» لقب یې درلود ، په داخلي چارو کې بالکل آزادو. په خپل اختیاریې مالیات ټولول ، اوددې د رکه په کال کې بولک روپۍ دده لاس ته ورتللې . منصورعلي خان مرکزي حکومت ته دضرورت په وخت کې د شاهي پوځ لپاره د عسکرو یو ټولګی ورلاندې کاوه. ولې ددې ټولګي شمېرنه وومعلوم (٥١).

دومره معلومه ده چې شاهشجاع ته دباجوړ خان (حاکم) پنځه سوه عسکررالیږل (٥٢) . د ١٩ پیړۍ په اخرو کې ددې قبیلې مشرآزاده سرداري جوړه کړه ، اوپه خپله سیمه کې یې نامحدودقدرت درلود ، اوپه زرګونو رعیت یې درلودل. ددې نه څنګ ته د «دیر» او «کونړ» خانان هم آزاد شول .

درانیانو امپراتورۍ دغه اداري تشکیلات اودولایاتو سازمان داښیي چې ددې دولت دغه پارچه ګي ، نه یوازې دهیواد په اقتصادي، سیاسي او کلتوري ساحه کې منځ ته راووته بلکه په اداري سازمان کې یې هم وجود درلود . نه احمد شاه او نه دده اولادونو یوهم ونه کولای شول، دولایتونو داسې مرکزي متحدالشکله اداري سیستم منځ ته راوړي ، چې و کولای شي، په یو ډول د درانیانو عظیمې امپراتورۍ په ټولو سیمو کې یوشان عمل وکړي .دمرکزي حکومت کنټرول او نفوذ ...

دامپراتورۍ په تابع سردارانو کې تش په نوم و، او د وی د خپلو سیمو په داخلی مسایلو کې تقریباً ځانونه آزاد احساسول، بلکه د لومړی ګروپ په ولا یتونو کې.
(د لته هغه ولا یتونه مقصد دي چې د پا دشاه له خوا حاکمان او نور مهم لوي مامورین ورکې انتصابیدل) هم وضع په همدې ډول وه، چې په علیده محلونو کې پراته وو، او سیدونکی یې پښتانه او مرکزي حکومت ته تابع هم و، ولی هلته هم قدرت د هغو سیمو قبیلوي خانانو په لاس کې واقع و.
د درانیانو امپراتورۍ د زوال اساسی علت هم دا و چې په دغه عظیمه امپراتورۍ کې چې مختلفې سیمې یوکې راټولې شوې وې یو فعال اداري وحدت وجود نه درلود.

# پنځم فصل

## مالیات او مالیاتي سیستم.

## د دولت عایدات او لګښتونه

د دراني شاهانو خزانو چې کوم عایدات درلودل، هغه ورته په ټولنیز ډول د«مالیاتي دیوانونو» له لارې راتلل. دغو «مالیاتي دیوانونو» چې کوم مالیات او محصول ټولاوه،(۱) زیاتره برخه یې معمولاً په جنسي ډول وه. نغدي مالیات د پیسو په بڼه، او جنسي محصول په جنسي توګه د دولتي تحویلخانو او ګدامونو ته سپارل کېدل.

---

(۱) د دې خبرې ثبوت لپاره چې ویل کېږي، د ټولو مالیات ټولونو رو

د درانیانو په زمانه کې د افغانی ټولنې د ځمکو داریکو څرګندونه زمونږ موضوع نه ده ، له همدې کبله په ټوسوري دوره کې ' یعنی د ۱۸ پیړی په دو همه نیما یی کې چې همدا دوره زمونږ تربحث لاندي ده ، د درانیانو په امپراتوری کې د ځمکو څو کټیګورۍ لیدلای شو ، او په هغه باندي بس راورو . دولتی ځمکې چې یو مخیزه دشاه په واك کې وې ، یو ډول ته خالصه او بل ته د «دیوان» ځمکې ویل کیدې . د دولتی ځمکو اندازه زیاتیدل ، د امپراتوری په لو مړیو کلو کې له هغوسو بوسره تړلی وو ، چې احمد شاه د راني په بریالیتوب سره یو په بل پسې ترلاسه کولې . د اتلسمې پیړی په وروستیو کې د دولتی ځمکو زیاته اندازه پښتنو خانانو ته یا په جا یګیر کې ور کړای شوه ، او یاد بادشاه ژ ' د خپلوانو ته ور وویشل شوه . «وقفی» یا «اوقاف» دا هغه ځمکې وې چې د بېلو بیلو

(د ٦ ٠ ١ مخ د پاورقی پاتی برخه )

پدې کتاب کې را ځی ، چې د جلال آباد ولایت جنوبی سیمې ځخه چې د هغه ولایت نیما یې برخه کیږي ، په کال کې ۲۲۱ زره رو پۍ د مالیې په ډول تولیدې . د جلال آباد له مرکز یعنی ښار څخه چې مالیه تولیده ، د هغه ورو پیو په حساب ۳ زرو ته رسیده . د هغه اندازه پیسې د ولایت د ټولې مالیې ۲۰ فیصد ته هم نه رسیده . ددې موضوع له پاره د هغه کتاب و ګو رۍ :

(W. Moorcroft G. Trebeck),
Travels in the Himalayanprovinces of Hindustan and the panjab..., from, 1819 to 1825, Vol. II, London, 1841, P. 357—358

دا باید له یاده ونه ایستل شي چې پدې دوره کې تجارت مخ په زوال و ، ګمر کې محصولات د ومره زیات نه وو . له دې نه دا نتیجه باید واخستل شي چې یوازې د

مذهبي موسسو يا روحاني کسانو ځانګړي مال بلل کيده ، او دشاه له اوري منل شوي و (۲) .

«ځانګړي» ځمکې هغه ځمکې وې ، چې د هغوی په لرلو سره د دولت له خوا په خاوندانو باندې کوم ملکي او عسکري خدمت جبري نه و. د ځمکو خاوندانو کولای شول چې په خپل واک سره له هغوی څخه ګټه واخلي ، دا پدې معنی چې څښتنانو يې کولای شول د میراث په توګه يې خپلو زامنو ته پریږدي ، خرڅې يې کړي، يا يې چا ته وبخښي ، او داسې نور . د ځمکې خاوند یوازې دولتي خزانې ته د هغې ځمکې له پلوه مالیات ورکول . هغه بزګران چې پدې ځمکو باندې پراته وو ، د ځمکو خاوند له يې اجاره ورکوله. سګر دا چاره بنې اوډولو نه دولایتونو په بیلو بیلو سیمو کې یوله بله بیل وو .

## د کلیوالي ټولنو ځمکې ، د قبایلو ځمکې !

د دغو بنیادي کټګوریو شمیر په هیڅ ډول بوره او بشپړ ډول نه ځرګندوي، داځکه چې د درانیانو دامپراتورۍ په بیلو بیلو ولایتو کې د ځمکو ملکیت او د هغه نه استفادې راز رازبڼې درلودې.

---

۲ـ د دغې کټګورۍ ځمکې د دراني امپراتورۍ په وروستیو وختونو کې لا زیاتې شوې . داوقافو ځمکې معمولاً د جوماتونو قبرونو لګښتو ته وقف کیدې. د مثال په توګه په ۱۲۲۱ هجري کې (۱۸۰۶) د کامران مور له وقفي ځمکو څخه یوه برخه د شیرسرخ مقبرې لګښت لپاره بیله کړه . کله چې ن. و. خانیکوف دافغانستان په لویدیزو سیمو کې په سیاحت بوخت و، د پیرمحمد کراولي؟ زیارت ترڅنګ يې د مرمر ولوحه واېده چې په هغه باندې داسې لیکل شوي وو :

دپورتنیو کتیګوریو له نشتوالی سره سره دا خبره باید له یاده ونه وځی، چې دقانون له مخې دټولو ځمکو اوی مالك «خاوند» په خپله شاه ګڼل کیده، د هغه حق له مخې شاه کولای شول، چې په امپراتوری کې له ټولو هغو کسانو څخه مالیات واخلی، چې ځمکې یې په لاس کې وې.

پدې توګه ددرانې دولت اقتصادي بنیاد په ځمکوباندې دځانګړي فیوډالی ملکیت په بنسټ ولاړو. دغه فیوډالي ملکیت له دې څخه څرګندیده چې دولت له ټولو هغو سیمو څخه اجاره-مالیه اخیستله، چې ددغه دولت په واکمنۍ کې راتلې. که له یوې خوا په دولت کې پرځمکو باندې ځانګړی ملکیت موجودو، نوپه یووخت کې په ځمکو باندې دګډ ملکیت متود هم جریان درلود. کوم حاصلات چې له ګډو ځمکو څخه لاس ته راتلل، هغه دفیوډالانو طبقاتی نمایندګانو ترمنځ ویشل کیدل.

(۳) دا باید وویل شي چې دولتي خزانې ته دهغو ټولو ځمکو مالیات نه ورکول کیږې سیده دشاه تر حکم لاندی وې. که له یوې خوا زیاتو قبایلو په دې بها نه دولتی خزانې ته مالیات نه ورکول چې ګوند ې دوې په عسکري خدمت بوخت دي نوهمدا دول زیات جاګیر داران له مالیې څخه معاف کړ شوي وو. له مالیې څخه هغه ځمکی هم معاف وې، چې دامپراتوری له خوا مذهبی مؤسسوته وقف شوې وی.

دځمکو مالیاتو اوروالی سیده دسیمو له شرایطو سره تړلی وو او معمولاً له لسمې نه تیولی دحاصلاتو تر دریمې برخې پورې رسیده. مالیه زیاتره په جنسی ډول تولیده

---

۳—ددرانیانو په امپراتوری کې دفیوډالانو طبقه دلاندې اتو اساسی ډلو څخه جوړیده: دپښتنی قبایلو اشراف، اوی اسلامی روحانیون، دمرکزي او ولایتی، ملکی

ځکه د مالیې ورکولو په وخت کې د کرنې اندازه غله په اصل مقدار ځینې جلا کیده اوله پاتې برخې څخه مالیه اخستل کیده. د مالیې په ډولونو کې چې تقریباً تر ټولو کتیګوریو څخه ټولیده، هغه ته «ثلث» ویل کیده، چې معنی یې دریمه برخه وه. د مالیې ټولولو لپاره پوځیانته مامور مؤظفو چې هغه ته «مامور ثلث» ویل کیده. د دغه «دریمه» پوازې له هغو ځمکو څخه اخستل کیده، چې تل یې اوبه درلودې. له للمیو ځمکو څخه لسمه برخه حاصلات د «خرج» په نامه دولتی خزانې ته ورکول کیده(۳).

په همدغه پیمانه مالیات له «نووآبادو» ځمکو او هغو څخه چې په کاریزونو او ویالو باند او په کیدې اخستل کیدل. د مالیاتو د دغه اندازه چې د مخه ورته اشاره وشوه، یو تا کلی معیارو، مګر د درانیانو لوې امپراتورۍ په ولایتونو حتی د یوه تا کلی ولایت په بېلو بېلو سیمو کې د طبیعی او نورو شرایطو په بدلون سره د دغه مالیاتی معیارونو رښتغیر کاوه. د مثال په ډول که ځمکې په یوازې د پسرلی په موسم کې په ویاله باندې پنه کیدې نوله هغو ځمکو څخه د مالیاتو اندازه تر دریمې برخې څخه نیمایې برخې ته رالږېدله. د تیمورشاه د سلطنت په وروستیو وختونو کې په لغمان کې له هغو ځمکو څخه چې په ویالو پنه کیدې د خلورمې نه تر نیمایی پورې حاصلات په مالیه کې ګرځول کیدل. (د حاصلاتو د غه اندازه په نغدي توګه اخستل کیده). د دغه ولایت د کاسان (ممکن کدان وی) په شاوخوا کې چې ۱ — ۲ زرو کورونو پورې تاجک اوسیدل په کال کې یې شپنه زره

۳ — د دې موضوع لپاره د غه کتاب وګورئ:

Henry C. Rawlinson, Report on the dooranee tribes dated [illegible] April 1841, central Asia. A contribution to wards the

روپۍ د مالیې په ډول ورکولې، چې هر کورته ۵—۶— روپۍ مالیه رسېده. د شاه شجاع د سلطنت په دوره کې په باجوړ کې له هغو ځمکو څخه چې او به یې لرلې له دریمې نه تر نیمایي پورې حاصلات د مالیې په نامه دولت اخیستل. د کابل په ولایت کې تر ټاکلي معیار نه هم زیات، آن له درو برخو نه دوې برخې حاصلات په مالیه کې ګرځېدل (۵) .

له للمي ځمکو څخه مالیات په جنسي ډول اخیستل کېدل. د دې ځمکو د حاصلاتو لسمه برخه له دود سره سم په مالیه کې ګرځول کېده. مګر کله به د غه معیار پنځمې برخې ته راپورته کېده. له هغو ځمکو څخه چې مالیه په جنسي ډول اخیستل کېده، د مالیاتو ټول د درمند په وخت کې ترسره کېدل. دولتي مامور به دې د مالیې په ټولولو موظف و، د درمند په سر راته، د ځمکې له خاوند څخه یې د دولت برخه بېلوله. کله چې مالیه نغدي اخیستل کېده نو هغه وخت مالیې معیار په جریب سنجول شوي و، یو جریب تقریباً (۱۹۰۰) متره مکعبه کېده (۶). د دغې اندازې مالیې لوړوالی او یا ټیټوالی د ځمکې په شیرازي پورې تړلی و.

له اوبو څخه هم مالیه اخیستل کېده. کله کله د ویالې خاوند د اوبو مالیه

---

(5) H—G. Raverty, Notes on Afghanistan and part of Baluchistan: geographical, ethnographical and historical Extracted from the writtings of little known Afghan and Tajik historians, ge ographers and genealogi st, London, 1880, P. 101, 121, M. Elphinstone, An account..., P. 299.

د ۱۹ پېړۍ په لومړي نیمایي کې د بارکزیانو په دوره کې د ځمکو مالیې «د خالصې نه» یا «د حکومت خالصې ته» چې له کابل، غزني او جلال آباد څخه

په نغدي ډول ور کوله ، او دمالي معيار د هغې ځمکې دحاصلاتو له مخې ټاکل کيده ، چې دلته دځمکې منځوال حاصلات په نظر کې نيول کيدل (۷). که فرضاً ويياله په سر کاري وه ، نو دځمکې د هرې ټوټې بايد ماليه ورکړ شوې واى چې له هغې ويالې څخه به ډېره کيده.

دباغونو خاوندانو نغدي ماليه ورکوله . دمالې اندازه دباغ د مساحت له مخې سنجول کيده . کله کله داسې هم کيده ، چې د هرې ميوه دارې ونې اوانګوروبوټي په سرجلا ماليه ټړل کيده ، دځمکوپه سرباندې دمالې نه پرته خلك اړوو، چې دولتي خزانې ته دغه لاندې محصولونه اومالېې ورکړي :

«خانه دودى » : (۸) ترکومه پورې چې معلومات شته ، د کندهار په ولايت کې د هرلوګي ياپه بله وينااه هر کور څخه دوه روپۍ ماليه اخستل کيده.

**دڅارويو ماليه سر ګله**: دڅارويوپه سرماليه کله په نغدي ، او کله په جنسي ډول وه . کله کله دڅارويوپه مالې باندې دڅړځايونو محصول هم سرباري کيده چې دغه محصول د « چپ پولي » نوم دراود (۹) .

---

(7) Henry. C. Rawlinson, Report, P. 825.

۸- G. Rowilson ليکي چې د احمد شاه په وخت کې د کندهار په ولايت کې دخلکو اوڅارويو په سرماليه اخستل کيده ، مګر دغه ماليه د هغه کسانو لپاره وه ، چې ددغه ولايت په ځمکو باندې نوي ميشته شوي وو . سري سريوه شاهي ، دميرې په سرځلور شاهي ، په غوا پنځه شاهي ، په اسپه او اوښ شپږ شاهي ماليه په کال کې دولت ته ورکول کيده .

**د ژرندې مالیه** معمولاً جنسي وه، او په کال کې ورڅخه نیم خروار غله د مالیې په بدل کې اخستل کېده.

**«سیورسټ»** هغه جنسي مالیه وه چې د پوځونو د ساتنې په نامه ټولېده (۱۰).

**د «میرابۍ» مالیه:** میراب دولتي مامورو، چې د ویالو او کانالونو د سیستم پالنه یې کوله.

د «میرابۍ» لپاره مالیه ټولېده، او د هغه ساتنه د خلکو په غاړه وه.

د «کدخدا» یعنې مشر لپاره هم محصول ټولېده.

د قاضي ساتنې لپاره محصول ټولېده.

د قاضي او «کدخدا» لپاره له هر هغه کور څخه مالیه ټولېده، چې په هغه سیمه کې به پروت و. په دې سربېره خلک اړوو، چې د حکومت په غوښتنه د پلونو، لارو، چونېو جوړولو، د ویالو پاکولو او د باروونو د ترمیم لپاره د بېګار په ډول کارته حاضر شي. خلک اړوو، چې د شاه مامورین او استازي د سفر په وخت کې داس له پلوه سنبال کړي، تر څو دوی وکولای شي په اسانه له یوه ځای څخه بل ځای ته ولاړ شي، او د ترانسپورت له مخې کوم مشکلات ونه وینې (۱۱).

بېګار او اسپ‌ساتنه په تېره د هغو بزګرانو لپاره ملامتو ونکي بار و، چې له یوه

---

۱۰- محمد حیات خان، حیات افغاني، ۵۲۰ مخ. دغه مالیات نه یوازې د غلې او وښو په ډول اخیستل کېده، بلکه د کسب ګرانو تولیدات سیده په مالیه کې هم

ځای څخه بل ځای ته نه کوچېدل ، لکه څنګه چې م . غبار ليکي «دوی به د ا يمی دول دبې اجورې مکلفيتونو ترڅنګ لاندي وو، او دغه بې اجوری مکلفيتونه په دوی د حاکمانو، روحانيو نوراو خانانو له لارې اچول کيدل » . مالداران کوچيان ، څنګه چې د هميشه لپاره په يوه ځاي پاندې نه اوسېدل نوله پورتنيو مکلفيتو نوڅخه دومره زيات نه زيانمن کيدل( ۱۲ ) . نامسلمان خلك چې په امپراتوری کې اوسيدل، هغوی د ولت ته جز يه ورکوله ، چې دغه جزيې کته مټ د« ژوند ا خيستلو » معنی درلوده (۱۳) .

له پورتنيو مانيانو ، پېکارونو اوسکلفيتو نونه پرته د ماليا تو يو بل بشپړ سيستم هم وجود درلود، چې هغه ته «ابوابو» ويل کيده. د «ابوابو» اندزې شميرنه په شرعيت پاندې تاکل کيده، اونه دشاد په فرمان سره ، بلکه د هرځای دوددستورهغه تاکل. د «ابوابو» زياته اندازه که محصول واو ياماليه په جنسي دول ورکول کيده، بزګران اړ وو، چې محلي فيودالانو او ماموينو ته د « ابوابو » سيستم سره غله ا و يا نو ر محصولات ور کړي .

---

۱۲ — م غبار، احمدشاه بابای افغان ، ۲۰۱ مخ .

۱۳ — ګ . کين جزيه داسې تعريفوي :« جزيه هغه ماليه ده چې داسلامي قانو ن له مخې د هرنامسلماني تبعې څخه د مرګ په مقابل کې اخيستل کيده» .

(Henry George Keene, the Turks in India, London, 1879, P. 184).

په ښارونو کې چې کسب ګران اوسېدل، مالیه ترې په نغدي او جنسي ډول ټولېده. په دوی باندې د مالیې کموالی او زیاتوالی سېده دد وي د تولید اتو له کیفیت او کمیت سره تړلی و. د مثال په توګه په کشمیر کې په کسب ګرانو باندې د مالیې اندازه د دوی د تولیدي مالونو د قیمت په سل کې شاو فیصد وته رسېده (۱۴).

رفاییل داني کوف لیکي: چې په کشمیر کې کسب ګران نه شي کولای بې د حاکم له مهر (ټاپې لګولو نه) ان یو ټوټه هم په خپل سرخرڅ کړي. په دې ډول له دوی څخه حاکم په وروخ کې درې زره روپۍ اخیستلې (۱۵). د ښاري سوداګرانو او کسب ګرانو څخه هم یوازې مالیات او محصول د محتسب او «میرشاب» په ګټه ټولېدل (۱۶). د کابل، پېښور، کندهار، هرات او یوازې نورو ښارونو سوداګران او کسب ګران به پورتنیو مالیاتو او محصولاتو سربېره اړوو، چې یوازې نور زیاتې بارې په غاړه و منې.

له یوه ښار څخه بل ښار ته د شاه دربار او (اردو با زار) لګښتونه باید دوی له خپلو جیبونو څخه ورکړي او دغه (مکلفیت) معمولاً په کال کې تر یو ې میاشتې پورې پاېښت کاوه. که څه هم کسب ګرانو ته په کار پیسې ورکول کېدې، مګر د دوی د تولیداتو قیمت نه یوازې

---

14—M. Elphinstone, an ac count... p. 509.

۱۵ — رفاییل دانیبګېف، په هندوستان کې د ګرجستاني سردار رفاییل دانیبګف سیاحت، مسکو، ۱۸۱۵ کال، ۳۱-۳۲ مخونه.

۱۶ — ج. فاستر لیکي: چې په کشمیر کې د پولیسو څانګې امر ته کوونکی دې ته اړ ایستل چې د هرې روپۍ حساب هغه ته ورکړي او په پای کې به کومې

پوره نه ورکول کیده ، بلکه منظم شکل یې هم نه درلود . په پوره یقین سره ویل کیدای شي ، چې د کسب گرانو د مالونو قیمت زیاتره برخه د « دربار یانو » او « کدخدایانو » لاسونو ته ورتلله (۱۷). سودا گران دد ې «مکلفیت » څخه تقریباً زیانمن کیدل .

د هغو کارگرانو تنخوا چې په دولتي درنګونو کې یې کاو کاوه ، اوان دما لګی ددرنګ کار گروتنخوا د یو کال لپاره په اجاره ورکول کیده (۱۸) . هغوی داگرانو او کسب گرانو چې دولتي خزانې ته یې مالیات ورکول ، هغه ددوی دعایداتو پوره پنځمه برخه کیده .

دولتي خزانو ته ترټولو زیات عایدات له لارو او گمرکي محصولاتو څخه ور تلل. گمرکي محصول عموماً د جنس له اصلي قیمت څخه په سل کې ۰ر۲ نغد گرځول کیده مگر دولایتونو حاکمانو کله کله په جابرانه ډول د مالونو محصول په سل کې

---

۱۷ ـ دلته موږ نه شو کولای چې د مالیاتو او محصولاتو په ټولو ډولونو باندې خبرې وکړو چې قبایلي مشرانو او یا دفیوډالانو کوچني ممتاز اقلیت قشر جبراً اخستل . بیلیوداسې لیکي : په واقعیت کې د مالیاتو او نور جبري مکلفیتونو ارقام زښت ډیر وو ، چې له کسب گرانو ، همسایه وواو فقیرانو څخه د قبیلو مشرانو او یا لویوفیوډالانو په ډول ډول بهانو سره په زور باندې اخستل » .

۱۸ ـ په ۱۷۹۹ کال کې شاه زمان دلاهور په سیمه کې د مالگې استحصال د کال په دوه پنځوس زره روپۍ په اجاره ورکړ . ددې موضوع لپاره د غه لا ندې

پنځوته رساوه ، اوکله تردې هم زيات (۱۹) . کله کله دا سې هم کيد ل، چې د محصول په وخت کې د مالونو شمير په خپله زيات وښيي اوبيايې په خپله خوښــه محصول کړي .

گمر کي محصولات دسوداگرانولپاره ډېر درانه وو. دسوداگرانوله مالونوڅخه محصول نه يوازې دخرڅلاوپه وخت کې اخستل کيده ، بلکه له يو ځای نه بل ځای ته دوړلو په وخت کې هم ددوی مالونه محصوليدل ، ترڅو چې هر مال به څو کرتې محصول شو ج-فاسترليکي: چې دجمو اوکشمير په فتح کې په هر واسود ولسوميلوفاصله باندې دگمرك نفرولاړوو، ترڅويې چې قدرت رسيده له سوداگرانو څخه يې دمحصول په نامه پيسې شکولې (۲۰) .

له دې نه پرته دسوداگرانو اوسيلانيانو څخه بې دول دول مالیې اخستل کيدې .

دمثال په دول هرڅوك چې کابل ته راته اړو، چې د «چراغی» په نوم يې يوڅه پيسې گمرك ته تحويل کړی وای له سیند نه په پورې کیدو باندې له هرسړی څخه تريوې روپۍ پورې ماليه اخستل کيده(۲۱). په همدې دول سره يولړ نورې لويې وړې مالیې هم وې چې خلك دهغوی په ورکولو اړ کيدل .

ددولت خزانې ته دلاروا وگمرکي محصولاتوله پلوه ډيرې زياتې پيسې راتللې په کشمير کې يوازې دتبتي مالونودمحصول له لارې نه په کال کې سل(۱۰۰) زره

---

۱۹ــ واين ليکي:ــ « چې دپښتنو شاهانو په وخت کې دملتان سوداگروڅخه ددوی دتجارتی مالونو بيه په سلو کې پنځه په ماليه کې گرځيدله ».

(G. T. Vigne, A personal narrative of visit to Ghazni, Kabul and Afghanistan and of a residence at the court

روپی دولتي خزانې ته ورکول کېدلې (۲۲). د اتلسمې پېړۍ په وروستيو کلونو کې يوازې په کابل کې سوداګرانو د ښهرونه تر اوو (۷) لکو روپو پورې شاهته ماليه ورکوله (۲۳). دمالیې تولول زیاتره پهاجاره ورکول کېدل، ددې کار علت داوچې دولتي مامورينو په خپله نه شو کولای له ځينو لرې ولايتونو څخه په خپل وخت ماليه واخلي، مګر په ځينو ولايتو کې چې دامپراتورۍ مرکزته نږدې پراته وو په خپله حاکمانو ماليه تولوله. دتيمورشاه له فرمان څخه چې د ۱۲۰۲ هجري کال دمحرم په مياشت کې (۱۷۸۷ اکتوبرمياشت) صادر شوی او عزيز الدين پوپلزايي په خپل کتاب کې راوړی دی په ښکاره څرګنده جوتېږي چې (تلي راغاسي) سر فراز خان بارکزي، که له يوې خوا يې دحاکم په توګه کارکاوه نو په يوه وخت کې د غلزيو ټپو دسيمې دماليې اجاره‌دار (مستجير ماليات) هم و (۲۴). حاکم په خپل وار سره د خپلو مربوطو سيمو ماليه په اجاره ورکوله. په هغې پورې اجاره دار هم کولای شول، چې د خپلې سيمې هره برخه بل چاته په اجاره ورکړي. له اجاره‌دار سره دماليې اجاره کولو په وخت کې قرارداد ترل کيده، چې د هغه قرارداد په مخ يې دماليې تولو لو وخت دسيمې څلور خواوې او دماليې عمومي اندازه ټاکل کيده (۲۵).

---

۲۲ — رفايل دانيبکف هندوستان ته سياحت، ۳۶ مخ.

23—H.G. Raverty, Notes on Afghanistan..., P. 65

۲۴ — عزيزالدين پوپلزايي، تيمورشاه دراني، ۱۷۴ مخ.

۲۵ — په داسې نسبتاً ابادې سيمې کې، لکه دمثال په توګه سند د اتلسمې پېړۍ په وروستيو کلونو کې ماليه زياتره په جنسي دول اخيستل کيده. اوس نو دا تصور بايد و کولای شو، چې ددرانيانو امپراتورۍ ...

د هرې سیمې پهسربانډې چې کومه ماليه ايښودل کيده ، هغه د نومو ړې سیمې په کليو باندې ويشل کيده ، د هر کلي پهسربانډې دماليې عمومي اندازې جوتو لونه وروسته د کلي (مشر) هغه په کورونوويشله . کله کلهداسې هم کيده ، چې د کلي (مشر) له هر کور څخهماليه ټولوله ، بيايې اجارهدارا و يا دهغهنفر وته ورسپارله . که ماليه چاته پهاجاره نه وه ورکړ شوې ، نودماليې ټولولونهوروسته د کلي (مشر) هغه سيده حکومتي موظفو کسانو تهورکوله . له بزګرانوڅخه چې ماليه پهجنسي توګه ټوليده اجاره دارانو په يوه وړ وخت کې غله اونور شيا ن په ځکه نرخ خرڅوله . او پهدې ډول سره يې نه يوازې دتا کلې ماليې پيسې پکې ايستلې ، بلکه پوره ګټه يې پکې کوله (۲۶).

دماليې له پيسونه چې دسيمې «ناظم» عايدا توته را ټللې ، د هغې سيمې «منطقې» لګښتونهتر سره کيدل . ددغو پيسو يوه برخه دولايت حاکم ته ورا ستول کيده . دو لا يت حا کـم هر کـا ل « د يـوا ن اعلى » ته د ما لي ټو لو لوا و د هغه لګولو په باره کې راپور ورکاوه . په راپور سربيره ولايتونهاړوو ، چې دماليا تو له پلوه دعايداتو يوه برخه دهيواد پايتخت تهددولتي خزانې په پته واستوي.دحا کم راپور د«ديوان اعلى» ترمنځې نه وروسته دشاه حضور ته د تائيد لپاره استول کيده. که چيرې «ديوان اعلى» ته دحاکم له راوپورنه داسې ښکاريده ، چې هلته دماليې له پلوه دولايت پهبودجه کې پيسې پا تې شوې او په لګښت نهوي رسيدلې،نو

---

۲۶—دماليا تو ټولول چې پهاجاره ورکول کيده دبزګرانو اجتماعي حا لت

په دې دول «دیوان اعلی» دغو یا هغو کسانو ته په پاتې پیسو پاندې برات ور کاوه، چې د هغه برات له مخې دولایت خزانه اړه وه، هغه اندازه پیسې دوی ته ورسوي (۲۷).

تر کومه ځایه چې موږ معلومات لرو دمالیې په ټولولو کې له ړتې جبر څخه کار اخیستل کیده. حکومتي مامورینو او اجاره دارانو هریوه په خپل وارسره کوښښ کاوه، چې د خپل لاس لاندې کسانو څخه په لوړه اندازه شو که وکړي.

هغه اندازه مالیه چې شرعیت ټاکلې ده، ددوي په باره کې هیچا نه مراعاتوله. دغو سختو حالاتو دا شرایط برابرول، چې دبزگرانو، کسب گرانو اولورو ټیټو طبقو داستثمار لپاره زندی لاکوچنی کړي. هغه پیسې چې دمالیې له لارې دولایتونو حاکمانو یادسیمو ناظمانو، کوتوته ورتللې، په رتیا بې باکی سره خرڅیدې. زیاتره داسې کیده، چې د ولایتونو حاکمانو او یا دمالیې ددفترونو مامورینو په خپل واک دزیاتې مالیاتو امرونه ورکول (۲۸). کله چې شاه شجاع پادشاه شو، په دې دول سره یې څو ځله مالیې چې دشاه محمود په دوره کې ټاکل شوې وې له منځه یووړې. ددې مالیو دروپیو اندازه دوو سوو زرو ته رسیده دمالیو ټولوونکي دوسله والو ټولگیو سره کلیوته تلل، او ملته چې هر څه په لاس ورتلل دمالیې په نامه یې اخیستل. ددوی په وړاندې یوازینی وسله دخلکو مقاومت و، چې دظلم په وخت کې یې دخلکوله خوا احساسوه.

په پنجاب کې داحمدشاه درانې په زمانه کې ځمکنی مالیا تې محصولات په رتیا سخته رویه سره ټولیده (۲۹). هلته تر اوسه پورې دا متل پاتې شوې ده «هرڅه چې موږ په خپله خوړلای پاڅکلای شول نورپاتې داحمدشاه دی» (۳۰).

د کشمیر دخلکو په باره کې گریسانف داسې لیکي «دلته په کشمیر کې لاندینی

ټېه (طبقه) کوزېټپېوزله ژوند کوی (۳۱) دافغانستان په اوپدېځو ولایتونو کې هم وضع په همدې ډول وه. د هغه ځای له خلکو څخه که اجاره دارتر قانوني مالیې دوه هومره محصول اخیست، دوی بیا هم ځانونه نیکمرغه ګڼل (۳۲). دد رانیانو دامپراتورۍ په وخت کې چې دمالیې په باب کوم زور تیری و، د هغه څخه اوسنی افغاني تاریخ لیکونکی هم سترګې نه شي پټولای (۳۳). دغه ډول ناوړې استفادې نه یوازې دمرکزي حکومت دکم زور تیا لپاره شرایط برابرول، بلکه ددولتي مامور ینوله خوا دما لي محکمو تا دیاتو نشتوالي، خصوصاً هغو کسانو چې دمالیاتو په ټولو لو مؤظف وو، د کلنیو دولتي عایداتو او لګښتو نو په باره کې دد وي اجرات په عدم سنجش دلالت کاوه. دناوړې استفادې زیاته برخه په مرکزي خزانه کې دمحاسبې په وخت کې مراعات کیده. دولایتونو حاکمانو او دمالیې مامورینو دناوړې استفادې په وخت کې ددربار په واسطو باندې ډېرهاکوله او دا واسطې ددوی دخلاصون یوانځنی لار وه. دمثال په ډول دشاه محمود دسلطنت په وخت کې داسماعیل خان دېرې حاکم نواب جبار خان چې درې لکه روپۍ بې ددولت له خزانې څخه غلا کړې وې، بدې محکوم شوی و، چې په سترګو یې ړوند کړی، مګر دخپل ورور سردار محمد عظیم په کومک سره له دې جزا څخه خلاص، او شاه وباښه. واین داهم لیکي چې دجبارخان په ژغورون کې هغه قیمت بهاسره خیمه هم بې اغېزې نه وه، چې داسماعیل خان دېرې حاکم له خواشاه ته دسوغا ت په توګه ور کړه شوه. د غه نواب چې څومره د مخه په غلا نیول شوی و، نه یوازې له جزا څخه خلاص شو، بلکه لږ وخت

---

۳۱ — ګریسانف میټروپالیت نوا پتر اسکي، دمنځنی آسیا هیوادونو په باره کې چې

وروسته یې رتبه هم لوړه شوه او د کابل حاکم په توګه وټاکل شو (۳۴).

د مالیې اجاره که څه هم کله کله د پښتنو خانانو سره قرارداد کېده، مګر دا باید وویل شي، چې د دې اجاره دارانو زیاتره برخه هندي سوداګران او سودخواره وه.

م. غبار لیکي چې د غو هندي اجاره دارانو د مالیې په ټولولو کې زیات حقوق او امتیازات لاس ته راوړل «له خلکو سره یې داسې چلند کاوه، لکه پښتني حاکمان» (۳۵). د درانیانو په امپراتورۍ کې د هندي سوداګرانو، سود خورو له ډلې څخه چې د مالیې اجاره په قرارداد ورکول کېده، زیات فعالیت د ښکار پور سوداګرانو، سود خورو په غاړه اخیست. د ښکار پور سوداګرانو سود خورو د مالیې له اجارې ورکولو نه پرته د پوځ لپاره ضروري ګټیان برابرول. د جګړې د ولجو په خرڅولو کې یې مرسته کوله، او د احمدشاه دراني سره یې د لښکر کشیو په وخت کې مالي کومک هم کاوه (۳۶). هندي سوداګرانو د پښتنو درباریانو او اشرافو لپاره د ولې سامانونه تیارول. هندي سوداګرانو پښتنو خانانو ته د ضرورت په وخت کې پورونه ورکول، مګر د پور په ورکولو یې لوړه ګټه ورڅخه اخیستله. د ومره باید وویل شي چې سوداګرانو پښتنو خانانو ته د زړه له کومې پورونه نه ورکول (۳۷). د پښتنو حکومت او یا د

---

(34) G. T. vigne A personal narrative P. 146..

۳۵ـ غبار، احمدشاه بابای افغان، ۱۶۲ مخ. او د غولا ندې کتابونو ته هم مخه وکړئ:

M. Elphinstone, An account... P. 255, 318; Charles Masson, Narrative of various Journeys in Baloochistan, Afghanistan ... including a residence in those countries from

ولایتونو حاکمانو ته چې کوم پورونه ورکول کېدل، په ځای یې هندي سوداګرانو سودخورو د ښهر و ولایتونو مالیه ځان ته برابروله. ددې پولي عملیاتو په نتیجه کې هندي سوداګرانو سودخورو د امپراتورۍ په مرکزاو ولایتونو کې د مالي دفترونه تر لاسه کړي وو.

ج. فا ستر لیکي چې هندي سوداګرانو سودخورو د تیمورشاه عایدات په خپل لاس کنترولول، او په افغانستان کې د افغاني حکومت له خوا حمایه کېدې، او په آزادانه ډول ژوند کولای شي» (۳۸).

هندي سوداګرانو سودخورو چې د فیوډالي استثمارګرانو سره د بزګرانو په شوکه کې برخه اخیستله، د کسب ګرانو په اسارت کې ورسره مله وو، د پښتنو شاهانو سره یې د لښکر ګډونو په سمبالولو کې مالي مرسته کوله، نو هغه دې وضعې تجارو سودخورو ته داموقع برابروله، چې د خپل سرمایې ځنې ښه اندازې لویې ګټې ترلاسه کړي.

ګریسانف په کابل کې د هندي سود خورو - سوداګرانو له ډلې ځینې داسې کسان یاد ول، چې ترلسو کرورو روپوپورې یې پانګه درلوده (۳۹).

په پورتنیو مالیاتو او محصولاتو سربېره چې د شاهي خزانې عایداتو لپاره تر ټولو ستره منبع وه کېدای شي، چې پولي نور منابع هم په ګوته شي او هغه دادي: د وظیفې او ماموریت خرڅول، د جریمو خرڅول او ضبط له پلوه (۴۰). د مسکوضر پولوله لارې د باد شاه

---

(38) Ibide, P. 73.

۳۹ـ ګریسانف ستروپالوت نوا پمرامکي 'د منځنۍ اسیا هیوادو په باره کې' ۱۰ مخ.

۴۰ـ د مالونو او جایدادونو د ضبط په وخت کې زیاتره و ختونه مجرمین په دار ځړول کېدل. د. ۱۷۹ کال په پسرلي کې د تیمورشاه پر قاضي بدې ګناه محکوم شو، چې نوموړی قاضي د بخارا امیرشاه مراد سره دیته مکتوب ارلیکه درلوده. نو موږي قاضي په

په نوم يې اخيستل او ترتولو ورومته د ټولو دولتي مونو څوليو نه ماليه اخيستل. د مثال په ډول په کشمير کې په ټليو باندې دولتي مونوپولي لګول شوې وه.

دغه ټلي د ټيټو طبقو له خوا د اساسي خوراك په توګه استعماليدل. د ټليو د دې دولتي مونوپولي دولتي خزانې ته په کال کې له يو ملك نه زياتې روپۍ ورکولې. الفنستون ليکلي دي: «چې د دراني شاهانو په دوره کې دولتي مونو پولي د خلکو او نيول شويو سيمو لپاره ډېر درونده وو» (٢١).

د دولتي عايداتو بله ستره چينه باج وو، چې دراني شاهانو ته په هندوستان کې خپلو متابعينو ورکاوه. دا هم بايد ووييل شي چې دغه باج د عايداتو له پلوه دومره ستر رول نه لوباوه، ځکه چې لوېږي خوبه پوره ډول چانه ورکاوه، دو هم دا چې منظم ډول يې نه ورکاوه. په هندوستان کې ترنورو ټول شوو سيمو د ډېر درونده باج اندازه د سند په سيمو ايښودل شوې وه. د دغه باج اندازه غلام سرور خان او عبدالکريم بخاري لس لکه روپۍ او بوتنگر يې ۱۳ لکه روپۍ ښولې ده مګر م. الفنستون يې په کال کې پنځلس لکه روپۍ حسابوي. د دغه باج اندازه د ۱۹ پېړۍ په لومړيو کې د بوتنگر په وينا په کال کې دوولکو روپيو ته رسېده.

د سند زيات رحاکمانو د غه باج افغاني مقاماتو ته په پرله پسې ډول نه ورکاوه، که د پښتنو قواو د حملې احتمال به يې لېده، نو مملا بسي به يې ټول شوى باج په يوه وار سره د پښتنو دولتي خزانې ته استاوه. د مثال په ډول په ۱۷۸۸ کال کې د سند حاکمانو شپېته لکه روپۍ په باج کې تيمور شاه ته

۱۸۰۵ کال کې دسند له حاکمانو څخه ۲۷ لکه روپۍ باج وا خلې (۴۲) .

د بهاول پورنواب په کال کې نژدې یو نیم لکه روپۍ درانې شاهانو ته ورکولی او په همدې اندازه خان لیا هم د پښتنو شاهانو ته باج ورکاوه . د دولتي خزانی ته زیات عا یدات له هغو ولجو څخه را تلل چې د لښکر کښیو په وخت کې د پښتنو لاس ته راتلل ، په ۱۷۵۷ کال کې احمدشاه دراني په دیهلي باندې یو کرور روپۍ باج کښیښود (۴۳) . کله چې د پښتنو پوځونه وروسته بیرته وطن ته روان وو ، یوازې د شاه جهانګري غنیمت په ۲۸ زرو اوښانو او سپړاګانو باندې

---

(42) Henry Pottinger travels in Baloochistan and sinde; accompanied, by a geographical and historical accunt of those countries london 1816 P. 399, 401; M. Elphinstone, An account ..., P. 409; R. Leech, Brief History of Kelat, brought down to the de position and death of Mehrab Khan, Brahoee ("Journal of the Asiatic society of Bengal", Vol. XII, 1843 P. 497; H. R. Gupta, studies, in the Later Mughal history of thePunjab (1707—1793), Lahore, 1944, P. 251.

(43) A. Dow. the history of Hindustan, Vol II, London, 1770, P. 364.

سامین لیکي چې احمدشاه درانی د دیهلي اشرافو ته خپل نسقچي باشي له فرمان سره واستاوه چې دوی له خپلو ټولو دولتونو سره پښتون پادشاه ته راولي . دسامین کتاب وګوری .

(Samin, Ahmad Shah Abdali and the Indian Wazir Imad-ul-Mulk, 1756—1757).

محمودالحسینی لیکي چې : احمدشاه درانی امر وکړ چې د دیهلي له امیرانو څخه دوه کروړه روپۍ پور کړ ی ، چې د څه دوه کروړه روپۍ یوسلیون طبر یزی تومانه کیږی ، خو کله چې له دوی څخه یې اولس (۱۷) لکه روپۍ خپلې خزانې ته رانقل کړې نو بې امر

بارو . دټوپخانی رازرازوسلې چې له دښمن څخه اخیستل شوي وې، بیر ته وغور څول شوې دالکه چې بارود ونکې څاروي تول پهمال باندې بارو و (۴۴) دپانی پت لهجگرې نه وروسته احمدشاه درانی دنواب شجاع الد وله څخه نوي لکه روپۍ واخستلې (۴۵).
شاه زمان په ۱۷۹۷ کال کې دلاهورله اوسېدونکو څخه دوه ویشت لکه روپۍ ترلاسه کړی. په همدې ډول ترسوبې وروسته پښتنو پوځو نو د کورنیو څار ویو ډیر شمیر یادې له ځان سره راوستلې . دمثال په ډول کله چې تیمور شاه په بهاو ل پوربانډې لښکر کښې وکړه دراتګ پهوخت کې یې کابل ته لهدې سرداری څخه یې شمېره زیاته څاروي را وستل » (۴۶) .
دپښتنو دخزانې عمومي عایدات دځینو اسناد و لهمخې دا حمد شاه درانی د سلطنت په وروستیو کلونو کې دکال درې کروړه یا په بله وینادیرشو میلیونو روپیو ته ورسېدل (۴۷) . د تیمور شاه په دوره کې د پښتنو دو لتی خز انی عایدات ډیر زیات ټیټ شول . داتلسمې پیړی پهاتیاوو کلوکې عمومي عایدات په یوه کال کې لهیوه کروړ روپیو څخه زیات نه وو (۴۸) . دغلام سرورخان دمعلوماتو

۴۴— دخراسان په لښکر کښو کې دادول لوټه ایدلای شو، مګرهلته دغنیمت اندازه دوسره زیاته نه وه. په ۱۷۴۵ کال دمشهدله سوبې نه وروسته څخه پیسې اودولت چې پهدې ښارکې د پښتنو لخان سره راوړ .(دروسیې خارجی سیاست ارشیف) له پارېس سره دروسیې روابط « ۱۷۵۵ د ۷ . ل ۱۶ ) .

45— J. Heras Durrani influ ence in Northern india (Islamic culture vol xI, 1937 No. 4), P. 502

(46). Irwin, Memoir on the climate, soil, produce, and

له مخې چې په ۱۷۹۳ – ۱۷۹۴ کلونو پورې اره پیدا کوي ، دشاه زمان خزانی ته په کال کې ۶۷ لکه روپی راتللی (۴۹). په ۱۸۰۹ کال کې الفنستون دشاه شجاع دخزانی ټول عایدات ذوي لکه روپی ښودلې دي(۵۰) . ددرانی شاهانو دخزانو عایداتو اساسی منابع هغه هندي ولایتو نه وو، چې د فتوحاتو په وخت کې د احمدشاه درانی لاس ته ورغلی وو. هغه مالیات او محصولات چې د کابلستان ، کندهار او هرات سیمو او یا قبایلو دولت ته ورکول ، دد ولت دعمومی عایداتو په ټوټ کې یې دوسره اهمیت نه د راوده .

پدې باره کې حتی که زموږ سره نورماه خذونه نه وای ، نو د احمدشاه درانی له خپلو خبرو څخه په جوت ډول داځرګندیږي، چې ویل یې «امپراتوری لویدیځ سوید ته پوځونه راکوي، اوله ختیځې برخې څخه سوږ ته پیسې راځی» . دابېکو له خانیو څخه چې دامو سیند جنوب لوري ته پرتې وې د هغو په باب کې احمدشاه ویل چې دا سیمې دمو چیو هغو تهبکوته ورته دي، چې له لرې لوی ښکاري مګر کبینه پکې لږوي .

ددرانیانو په امپراتوری کې له هندي سیمو څخه تر ټولو شته من و لایت د کشمیر برخه وه . له دې ولایت څخه په کال کې ټولې شلو پښت لکه روپی دمالې په نامه دولتی خزانې ته تحویلیدلې . له دې شلو پښت لکو روپیو مالیې څخه د کشمیر دا کم هر کال دوه ویشت لکه روپی شاه ته ورکولې ، چې یوه برخه یې په جنسي ډول

عنې شالونه را ليږل (٥١) .

داحمدشاه دراني دسلطنت پهدوره کې د سند اوپنجاب له سيمو څخه زيات عايدات دمالې په نامه مرکزي حکومت ته راتلل . دلاهور اوملتان له صوبوڅخه په کال کې تولې پنځوس لکه روپۍ دماليې په توګه توليدلې . پوازې د پنجاب شمال اوپديځو غلوروسيمونه احمدشاه دراني ته څوارلس (١٤) لکه روپۍ ماليات ورکول کيدی (٥٢) هغه وخت چې د پنجاب صوبې زياتره برخه دسيکانو لاس ته ورغله . دما لپا تو اندازه ډيره راو لوېده دا وخت دملتان لهصوبې څخه په کال کې دوهدرې لکهروپۍ ماليې عايدات مرکز ته نه ورکول . نژدې پنځوس زهروپۍ داټکماکم شاهي خزانې ته دماليې په عنوان ورکولې (٥٣) .

---

٥١ ـ غلام سرور ليکي : چې د کشمير څخه د دولت په نوم ٤٠ لکه روپۍ وليږدلې ، مګر ددې مقدار څخه ٢٢,٥ لکه روپۍ شاهي خزانې ته را استول کيدې . فنستيون د کشمير عمومي عايدات ٢٦,٦٢ لکه روپۍ ښيي ، چې د دې اندا زې څخه ١ لکه روپۍ مرکزي شاهي خزانې ته وركول کيدی . مګر فارستر دا خبره کوي چې د کشمير عايدات ٢٠-٣٠ لکه رو پۍ وو ، چې له هغې څخه اوولکه روپۍ پادشاه ته راليږل کيدې . دفاستر کتاب وګورئ :

(G. forster, A Journey…Vol. II, P. 29).

دعبدالکريم بخاري پهوينا کشمير اوملتان پوځای په کال کې ٣٢ لکه رو پۍ دماليې په دول شاه ته ورکولې (عبدالکريم بخاري ، افغان و کابل ، ٣٤ مخ ) .

(52) J. Heras, Durrani influence..., P. 499; Jadunath sarkar, all of the Mughul empire, second edition revis and corrected Vol. I calcatta, 1949, p. 236.

د هندوستان نورو ولایتونو او سیمو ارخه زیاتې پیسې د مالیې په ډول درانیو شاهانو ته رالیږلې. د مثال په ډول مظفر اباد هر کال یو لک روپۍ مالیه ورکوله (۵۴). له دروند تر غلورو لکو روپیو پورې مالیه شکارپور ورکوله. تقریباً یو لک روپۍ سکر (۵۵). د غازیخان دیرې په سنځوال ډول هر کال نژدې اووه لکه روپۍ او اسماعیل خان دیرې دیونیم نه تر دوو لکو روپیو پورې مالیات دولت ته ورکول (۵۶).

پدې ډول اوروسته له هغه چې د پښتنو له لاسه د پنجاب او سرهند زیاته برخه ووته، بیا هم د احمد شاه زمانو ته د هندي ولایتونو څخه په عمومي ډول په کال کې څلور نیمې لکه روپۍ مالیه راتلله. د مالیاتو پول ډولونه چې د هندي ولایتونو څخه راټولیدل، په عمومي توګه اوړاوو لکو روپیو ته په کال کې رسیدل. د احمد شاه درانی دوا کمنی په موده کې له ټولو هندي سیمو څخه (سرهندې چې ور وسته پنجاب او سرهند د دوی له لاسه ووتل) له یوه کرور نه زیات عاید ات د مالیې په نامه راغونډ یدل.

د درانیانو د امپراطوری له لویدیځو ولایتونو څخه شاهي خزانې ته د ختیځو ولایتونو په نسبت لږ عایدات راتلل. غلام سرور لیکي: چې د پېښور حاکم په کال کې ۱۱۹۱

(54) G. forster, A Journey..., Vol. 11, P. 40.
(55) M. Elphinstone, An account..., P. 501, charles Masson, Narrative...,Vol I, P. 357—359.

۵۶—د دراني شاهانو په عصر کې کوم مالیاتي عایدات چې د غازیخان دیرې په ولایت کې ټولیدل، د هغوي په باره کې تاریخي معلومات ضد او نقیض صفت لري. په مختلفو تاریخي اسنادو کې مختلف اعداد ښودل شوي دي، لکه په یوه کال کې ۱۶، ۱۲، ۱۱، ۱۷ او ۵ لکه روپۍ. زموږ په عقیده —وروستی دوه عدده، یعنې د کال (۷) یا (۵) لکه روپۍ یقین ته نژدې ښکاري. په همدې ډول د اسماعیل خان دیرې ولایت د کلنیو مالیاتي عایداتو په باره کې مختلف تاریخي اسناد مختلف اعداد په ګوته

لکه روپۍ لەدې ولایت څخه دمالیې په نوم ټولول اوشاهي خزانې ته يې ټولي ۵۹۲٫۲ لکه روپۍ واستولې (۵۷) .جلال آباد له دوونه تر څلورولکو پورې، کابل له ۲٫۶ څخه تر پنځو لکو پورې ، غزنی نږدې يولك ، غوربند ۲٫۵ لکه ، غلزا يي کلات یولك ، چاریکاروا وپنجشير بولك ، کندهار نږدې دوه لکه، فراه ۲٫۶ لکه روپۍ او هرات(دم.الفنستون په وینا) شاهي خزانې ته هیڅ نه رالیږل (۵۸).دغلام سرور په وینا هراتشاهي مرکزي خزانې ته څلور لکه روپۍ دمالیې په نامه رالیږلې باميان او هزاره جات دواړو بوځای یولك روپۍ دولت ته مالیه ورکوله (۵۹) .

له پورتنی محاسبې څخه جوت څرګند یږي ، چې دامپراتورۍ له لو یـ‌د يځو ولایتو نو څخه په کال کې ټولي ۵۰ لکه روپۍ مالیه ټولیده ، اوشاهي مـر کزي خزانې ته په کال کې له ۱۷ لکورو پیو څخه زيا تې نه رالیږل کیدې.

که څه هم زموږ په لاس کې پوره معلومات نشته او هغه څه چې راسره دي هغه معلومات هم کله کله يودبل تضاد راځي .مګرله دې مشکلاتو سره سره په ټینګد سره ویلای شو، چې دامپراتورۍ دولایتونود عايداتوپه برخه کې آسا ســی عا يدا ت د د و لت مر کز تـه لـه ختيځ او دهندو ستا ن لـه شما ل ختیځو برخوڅخه زیاتې پیسې دمالیې باج او نورو نو مونو لەلیارې راتللې .دغه معلومات په لنډو جدولونو کې په لاندې توګه وړاندې کېږي چې مواد يې موږ له غلام سرور څخه اخیستي دي،چې هغه په ۱۷۹۳–۱۷۹۴ کلونو کې راټول کړي دي.

---

(۵۷)، ځینې تاریخی اسناد وايي ،چې پېښور په کال کې شاهي خزانې ته ۷ لکه مالیه ورکوله .ددې موضوع لپاره دمثال په توګه د غه کتابونه وګورئ :

G. forster, A Jouney, Vol. 11, P. 50;

لومړي جدول :

دامپراتورۍ په ختیځو ولایتونو کې* د درانی بادشاهانو خزانی ته کلنی عمومی عایدات او تحویل .

| ولایتونه | نوع عایدات د زرو روپیو په حساب | د بادشاه خزانې ته د زرو روپیو حساب | ٪ |
|---|---|---|---|
| کشمیر | ٤۰۱۸ | ۲۲٥۰ | ٥٦,١ |
| ملتان | ٦٧٣ | ۲٥٥ | [illegible],٤ |
| اسماعیل خان دیره | ۲۹۹ | ۱۲۰ | ٤٠,[illegible] |
| غازی خان دیره | ۱۰۹۷ | ٦٧۰ | ٦١,٠ |
| شکارپور | ٥٩٣ | ٣٩١ | ٦٥,٩ |
| مظفرآباد | ۱۰۰ | معلومات نشته | - |
| هندی هزاره | ۲۳۰ | " " | - |
| سکر | معلومات نشته | ٦٥ | - |
| اټک | ۱۱۰ | ٥۰ | ٤٥,٤ |
| نتیجه | ۷۱۲۰ | ۳۸۰۱ | ٥٣,٣ |

*دغلام سرور راپور لپاره د غه کتابونه وګورۍ .

H. R. Gupta, studies..., P. 272—275; G. forster, A Journey from Bengal to England, Vol. 11, P. 40—46.

په دغو ۳۸۰۱ زرو روپیو باندی باید ۱۲٥۰ زره روپۍ نورې هم زیاتې شی ، چې دسند ،بهاول پور اولیا (؟) ولایتونو له حاکمانو څخه دباج په نامه هر کال اخیستل

وو ، چې دوی مرکزي پښتني حکومت ته تابع وو ، مګر له کلنی باج څخه خلاص وو ، لکه د بلوچستان بېلګر بیګ : له لویدیځو ولایتونو او قبایلی سیمو څخه د پښتنو پادشاهانو خزانی ته د مالیې په نامه دومره زیاتې پیسې نه راتللې. دغه اندازه له دوهم ګڼې جدول څخه د یر ښه څرګند یږي .

دوهم جدول :

د درانیانو امپراتورۍ په لو یدیځو ولایتونو او د قبایلو په سیمو کې * د پادشاهانو خزانی ته کلنی عمومي عایدات او تحویل .

| ولایتونه | عمومي عایدات د زرو روپیو په حساب | د پادشاه خزانې ته: د زرو روپیو په حساب | د پادشاه خزانې ته: ٪ |
|---|---|---|---|
| کابل | ٩٩٥ | ٢٦٥ | ٢٦,٦ |
| پېښور | ١١٩١ | ٢٩٥ | ٢٤,٧ |
| جلال آباد | ٤٠٠ | ٢٠٠ | ٥٠,٠ |
| غوربند | ٩٠ | ٤٠ | ٤٤,٤ |
| بنګښ | ١٠٠ | معلومات نشته | — |
| غزني | ١١٠ | ٥٠ | ٤٥,٤ |
| غلزایي کلات | خبرتیا نشته | ١٠٢ | — |
| چاریکار او پنجشیر | ٢١٠ | ١٠٠ | ٤٧,٦ |
| کندهار | ٩٦١ | ٢١٠ | ٢١,٨ |
| فراه | معلومات نشته | ٦٥ | — |
| هرات | ١١٨١ | ٤٢١ | ٣٥,٦ |
| بامیان او هزاره جات | ١٠٠ | معلومات نشته | — |

پدې جدول کې سربېره خراسان سیستان او بلخ رانه وړل، چې لوړېږیو دو و ولایتونو

دولت ته په کال کې نیږدې شاوېښت لکه روپۍ او له بلخ څخه پنځه لکه عایدات لاس ته

راوړل . دغو ولایتونو شاهي خزانې ته په واقعیت کې هیڅ نه رالیږل. ددې ولایتونو

حاکمانو یوازې دومره کول چې هر کال به یې شاه ته په پورتني اندازه «سوغاتونه» رالیږل

او یوه کمه اندازه باج به یې په جنسي ډول دولت ته ورکاوه. دا هم ویل کیږي ، چې

د بلخ او اخچې حاکمانو ته د مرکز له خوا هر کال مستمري معاش ورکول کیده .

له پورتنیو راپورونو څخه ښکاري چې شاهي خزانو ته له کلنیو عمومي عایداتو له جملې

څخه ( دا شامل نه دي هغه پیسې چې د لاسه یې وتلي وي ) چې له اوږدې څخه ولایتونو او قبایلو سیمو

څخه ۹۷۹۹ زره روپۍ تول عایدات تولیدل ، ۱۷۴۸ زره روپۍ یا په سل کې

۲۵٫۸ یې شاهي خزانې ته ور کول کیدې .

که د غلام سرور راپورونه او معلومات په نظر کې ونه نیول شي، او نورو ماخذ نو ته

مخه کړو ، نو هماغه یوه اړیکه د لوېدیځو او ختیځو ولایتونو مالیاتي عایداتو تر منځ

ایدلای شو. د مثال په توګه د عبدالکریم بخاري په وینا، له ختیځو ولایتونو څخه

( کشمیر، شکار پور ، ملتان ، غازیخان دیره، اسماعیل خان دیره ، اټک، سند، خیرپور

او نور ) افغاني شاهانو ته په کال ... زره روپۍ یا په بله وینا په کال کې

شاهي خزانې ته راتللې چې په سل کې ۰ر۲۳ کېدې (٦۰).

دغه پورتنې جدولونه دا هم ښيي چې په هندوستان کې له ټول شوو سيمو څخه شاهي خزانې ته په سل کې ۵۳ ټول شوي عايدات د ماليې په ډول راتلل په داسې حال کې چې د پښتني امپراتورۍ لويديځو ولايتونو او د قبايلي سيمو سره يوځای د عايداتو اندازه چې دولت ته يې ورکول په سل کې ۳۲ وه. دا هم بايد وويل شي چې دغه په سل کې د يو ديرش عايدات منځوالې اندازه ښيي، ځکه په رښتيا سره له هغو سيمو نه چې پښتنه قبايل پکې اوسيدل، شاهي خزانې ته د مالياتو په نامه ډير لږ عايدات راتلل دې کار دوه علته درلودل. لومړی دا چې (دج. فاستر په وينا) (۶۱) د قبايلو تابع کول گران وو. دوهم دا چې د درانيانو په امپراتورۍ کې پښتنو قبايلو او د پښتنو قبايلو اشرافو ځانته غوره درېځ درلود. الفنستون ليکي چې «تاجکانو د پښتنو دولت ته زيات ماليات ورکول» (۶۲). کريستي چې په (۱۸۱۰) کال کې د افغانستان لويديځې سيمې پخپله ليدلې دي، ليکي چې په فراه کې پښتنو دولت ته هيڅ ماليات (د ځمکې ماليه) نه ورکول. له بازار څخه چې کوم ماليات ټوليدل، هغه هم ډېر کم وو (۶۳).

لکه څنگه چې څرگنده ده احمد شاه دراني له پښتنو قبايلو څخه هغه زيات ماليات اخيستل بند کړل، چې پخوا د نادرافشار له خوا په دوی ايښودل شوي وو. د پښتنو قبايلو

---

۶۰ - عبدالکريم بخاري، افغان و کابل ۳ــ۵ مخونه.

(61) G. forster A Jouney, From Bengal to England Vol. 11 P. 88.

(62) M. Elphinstone, An account..., P. 312.

(63) "Abstract of captain christe's Journal" Henry pottinger, Travels in Beloochistan and sinde, accompanied by a geographical and ... London, 1816), P. 411.

په ستنځ کې د «درانیانو قبیلې» ځانته اجتماعی دریځ درلود. داځکه چې پخپله شاه دوی ته منسوب و. ددې قبیلې له غړیو څخه د ځمکې مالیه نه اخیستل کېده، د ځارویو باغونو او سړی سر مالیې او محصول څخه معاف شوي وو. دوی یوازې د ژوند و لپاره مالیه دولت ته ورکوله «کدخدا» او «میرابی» ساتلو څخه پرته یې نور هیڅ محصول دولت ته د مالیې په نامه نه ورکاوه. همدغه قانوني وضع چې درانیانو ته یې زیات امتیازات ورکول نور قبایل ور څخه هم په څخې بې برخې نه وو. زیاتره پښتنو اول خود دولت د مالیې او محصول په نامه هیڅ نه ورکول، او که یې ځینو ورکول نو هغه

دومره لږ وو، چې په هیڅ شمېرل کېدل. کله کله ځینې پښتانه قبایل اړ کېدل، چې شاه ته مالیه ورکړي، مګر دا خبره باید هېره نه شي، چې ددې قبایلو مالیه تش په نامه وه. د مثال په توګه د لویدیځې پښتونخوا ګادو نیانو هر کال شاه ته یواس ۱-۲ بازونه او یو لږ اندازه او ازلرونکی سکې (۶۴) د مالیې په نامه لیږل. دا تلسمې پېړۍ په وروستیو کلونو کې د خوست بکر خیلو چې شمېر یې ۶— زرو کورونو ته رسیده تیمور شاه ته په کال کې د رې زره روپۍ د مالیې په نامه استولې، چې د هر کور په سر نیمه روپۍ رسیده (۶۵).

د کونړ سیدانو شاه ته هیڅ مالیه نه ورکوله، یوازې هر کال به یې کوچنی سوغاتونه د وفادارۍ په نامه شاته استول (۶۶). د دوړو قبیلې په کال کې د وولس زره روپۍ د مالیې په نامه شاه ته ورکولې (۶۷). په همدغه اندازه پېسې احمدشاه درانی له بنوڅیو څخه مالیه اخیستله (۶۸) دغه اندازه مالیه چې پښتنو شاهانو له قبایلو څخه غوښتله په سم ډول شاهی خزانې ته نه استول کېده ځکه کله به چې شاه له قبایلو څخه د مالیې

---

(64) H. G. Raverty, Notes on, Afghanistan..., P. 288.

په نامه پیسې ټولولې، نیمایې برخه یې د خانانو له لاسه غصبېده. کله کله داسې هم کېده، چې قبایلي خانانو د کال ټوله مالیه خان ته را ګرځوله. د قبایلو خانانو ته خپلې سیمې زیاتره وختونه په جاګیر کې ور کول کېدې، او په دې ډول سره خانان په لښکر واو یادر بار کې پیاوړي کېدل (۶۹).

د دولت زیات لګښتونه په پوځونو باندې کېدل. د م. غبار په قول احمدشاه درانې هر کال یوسلو ونوي لکه روپۍ په خپلو پوځونو باندې لګولې (۷۰). د دغه شمېر ډېرې چې د سخه وښوول شوې، موږ ته ډېرې زیاتې ښکاري. د شاه زمان د وا کمنې په وخت کې د منظمو پوځونو شمېر د احمدشاه درانې په نسبت کم و. او د هغه اسناد و له مخې چې له موږ سره شته، ویلای شو چې د شاه زمان پوځونو لګښتو نه له پورتنې اندازې ډېر لږ وو. شاه زمان په خپل ګارډ «غلام خانه» باندې په کال کې ۹ر۱ لکه روپۍ لګولې او د توپخانې لګښتونه یې ۷ر۱ لکه روپۍ کېدې. که چېرې هغه لګښتونه هم په نظر کې ونیسو، چې د «میرا خور باشي» په دفتر (د اسونو، پېلانو، اوښانو کچر واو نورو بارړو نکو ځارو یو په ساتنه باندې کېدې) او ۹ر۳ لکورو پېو ته یې لګښتونه رسېدل، او بیا ټول سره یو ځای کړو، نو ګرد ۵ر۸۱ لکه روپۍ ورځخه په کال کې جوړېږي. په دې ډول سره ویلای شو چې د دغه وروستي شمېر د

---

۶۹ — د محمد زایانو ټبر د اتلسمې پېړۍ په وروستیو کلونو کې شلو زرو کورونو ته رسېده، له دغې سیمې ځخه چې محمد زایان پکې اوسېدل په کال کې د رې لکه روپۍ مالیه اخیستل کېده.

مغبار له مخې لس ځلې کم راځي (۷۱). له دغو ۱۸۰۵ لکو روپو سره د دولت د عايداتو پوره برخه بايد زياته کړو، چې د جايګيرو په بڼه ورکول کېده، او له هغه پلوه به د خپلو عسکرو خوراک او پوښاک برابروه. د غلام سرور په حساب ټول لګښتونه چې د دراني شاهانو په کال کې کول ۲۳ لکه روپو ته رسېدل. (ترکومه چې څرګنده ده جايګيرونه يوازې د عسکري خدمت په مقابل کې نه ورکول کېده). که چېرې دغه اندازه پيسې له هغو لګښتونو سره يوځای کړو، چې په پوځونو باندې کېدل نو نژدې ۵۰،۶ لکه روپۍ ترې جوړيږي. داسې ګومان کېږي، چې د شاه زمان نظامي لګښتونه د خپل پلار او نيکه په نسبت لږ دي، مګر دا سوچ بايد و نه کړو، چې د لګښتو تناسب به ډېر توپير ولري.

د دولتي لګښتو بله غټه سرچينه اداره وه. دغه لګښتونه چې په ادارو باندې کول

د شاه زمان د سلطنت په موده کې د کال پنځوس لکه روپۍ ورڅخه جوړيدې.

دغه لګښتونه په عمومي توګه د ولايتونو په عايداتو باندې پوره کېدل. د دربار لګښت ۷،۳۲ لکو روپو ته رسيده. په دې کې هغه لګښتونه را تله چې د اسونو ساتنې لپاره له ولايتونو څخه د دانو او وښو په ډول راوړل کېدل. دغه داني او واښه هغه ماليه وه چې په جنسي ډول دولت د خلکو څخه اخيسته له. د مثال په توګه د تون او تبس خان هر کال شاه ته د يو لک روپو په قيمت غالۍ، تمباکو، زعفران او داسې نور شيزونه استول. د بلخ او اقچې نه هر کال شاه ته ۱۷۰۰ اسونه، ۲۲ زره پسونه، او دميمنې حاکم يو زر اسونه، لس زره پسونه د پښتنو شاهانو ته رالېږل (۷۲). په

---

۷۱ـ دغه راپور چې د غلام سرور څخه موږ دلته رانقل کړ، په غه لا ندې

«ذخیره کاروانو » پاندې د کال ۸۵ ر ۲ لکه روپۍ لګیدلې .(دا هم باید وویل شي چې دد ې شمېر پهسوزیاته برخه اسلامي روحانیونوته ورکول کېده ) . په ودانیواوددولتي اداروپه ترمیم باندې ۱ ر ۲ لکه روپۍ لګیدې . د دولتي خزانولها ید اتو څخه یوه برخه پیسې دبلخ او اقچې خانانو بود جې ته انتقالیدلې .(په کال کې نژ دې ۸ ر ۱ لکه روپۍ کید ې ) .م. الفنستون لیکي چې ان داحمدشاه او تیمورشاه د سلطنت په مودوکې یوه تاکلې اندازه پیسې دمستمري تنخوا په بڼه هرات ته استول کېدې (۷۳) .

پدې ډول سره دشاه زمان د سلطنت په لومړیو کلونوکې ددولتي لګښتونو ټوله اندازه ۱ ر ۶ ۱ لکوروپیوته رسېده . امالهدې پیسواند ازی څخه تقریباً ۶ ر ۳ لکه روپۍ له مرکزي خزانې څخه اجرا کیدې،اوپاتې نورې پیسې چې نژدې ۶۸ فیصده کیدې، دولایتو نوله عایداتوڅخه ورکول کیدې — څنګه عایدات چې د پښتنوشاهانوخزانو ته استول کیدل ، یوه غوټه اندازه یې دناڅاپي سرباریو پیسو لپاره ذخیره کیده (۷۴). دشاه زمان دسلطنت په موده کې دغلام سرور دراپورله مخې ۶۷ لکوعایداتو څخه په کال کې تقریباً ۲ ر ۱ لکه روپۍ د«تورې ورځې» په نامه ساتل کیدې . دشاه شجاع ګردلګښتونه دامنیت په کارونو کې له پنځو سولکوروپیو څخه زیاتېدل (۷۵) . موږ وېلای شو ، چې ددرانیانو امپراطورۍ په وروستیو کلـــونو کـــې (۱۷۹۳—۱۸۰۹) د پښتنو دمرکزي خزانې لګښتونه په کال کې دنهو کـــرورو روپیو څخه نه زیاتیدل ، چې د دریم جدول له مخې یوره څرګندیږي . په افغانستان کې چې فیوډالي ساتونه او پدامنۍ د دراني شاهانو دسلطنت په وروستیو کلونو کې

بېل شوې ، او دېر شمېره داخلي جنګونو له خوا بدرګه کېدې . د هېواد د خلګو په اقتصادي وضع بې رته بده اغېزه وکړه. د دې بدامنيو په نتيجه کې که له يوې خوا امپراتوري زيات ولايتونه له لاسه ورکول ، نو له بلې خوا د مرکزي شاهي خزانې د عايداتو اندازه رته را ولوېده .

د کابل په ولايت کې د اتلسمې پېړۍ په وروستيو کلونو کې د تجارتي مالونو محصول له لارې په کال کې د ٦-٧ لکو روپيو په اندازه عايدات د دولت لاس ته راتلل مګر د ١٩ پېړۍ په اوايلو کې د تجارت له لويدلې او فيوډالي اړودوړ سره د غه اندازه ٢٥ زرو روپيو ته راټيټه شوه (٧٦) . د غزني ولايت ګمرکي عايدات د ١٩ پېړۍ په لومړيو کې ٧ زره روپۍ کېدې. د دراني شاهانو اقتصادي قدرت د فيوډالي شورشونو په نتيجه کې سخ په ځور روان شو ، د پېړۍ زياتې دولتي محمکې د دوی له لاسه ووتلې د احمدشاه دراني د سلطنت په وروستيو کلونو کې د کندهار په ولايت کې خالصې محمکې په سل کې ٧٥ د دراني خانانو په لاس کې پرتې وې (٧٧).

---

(76) H. G. Raverty, Notes, on Afghanistan, P. 65;

دریم جدول :

د ۱۸ پېړۍ* په اوایلو کې د درانیانو امپراتورۍ مرکزي کالنۍ بودجوي لګښتونه

| دلګښت قلمونه | د روپیو په حساب | د لګښتونو ګردې فیصدي |
| --- | --- | --- |
| پوځي لګښتونه | ۱٤٦۰ | ۳۱,٦ |
| په دې جمله کې | | |
| د شاهي ګارد ټولګي "غلام شاهي" | ۱۱۹ | — |
| توپخانه | ۲۷۰ | — |
| د میراخور باشي اداره | ۳۹۰ | ۸,٤ |
| په دې جمله کې | | |
| د پادشاه د اسو طویلې | ۱۵۰ | — |
| شاهي پیلان "پیل خانه" | ۵۰ | — |
| کچرې | ۸۰ | — |
| اوښان | ۱۱۰ | — |
| ټول درباري دفترونه | ۱۱۷۰ | ۲۵,۳ |
| په دې جمله کې | | |
| حرم | ۵٦۰ | — |
| اشپزخانه | ۲۲۰ | — |
| اوډونه | ۳۹۰ | — |
| د پادشاه ځانګړي لګښتونه | ۱۲۰۰ | ۲٦,۰ |
| ساختماني کارونه | ۲۱۰ | ٤,۵ |
| د نجم او انجم پېښنامه د ستوري معارف | ۱۸۵ | ٤,۲ |
| ټولټال | ٤٦۱۵ | ۱۰۰ |

* - د غلام سرور د راپور له پاره دغه کتاب وګورئ :

(H.R. Gupta, studies..., P. 268)

د غلام سرور دوه ټاله سفر په ۱۷۹۳—۱۷۹٤ کلونو کې د امپراتورۍ ټولې سیمې چې په کال کې یې ۲،۳۹ لکه روپۍ دولت ته عایدات ورکول د قدرت په خاوندانو ویشل شوي وې . په راوروسته کلونو کې چې نورې نوې سیمې هم ورکړ شوې نو عایدات یې ډېر شول .

دغلام سرور د معلوماتو له تحلیل نه سوبه دا معلومه شي چې ددرانیانو په امپراتورۍ کې دجاګیر دارانو له خوا ددولتي محکو نیولو فعالیت دامپراتورۍ په اوږدو ولایتونو کې په ډیر زور سره پرمخ روان وو.

ددې کار دلیل داؤچې په دغو ولایتونو کې دپښتنو قبیلو خانانو قدرت زیات و.

دامپراتورۍ هندي سیمو په ولایتونو کې چې هلته افغانانو فتوحات تر سره شوي وو دغه موضوع په ۳ جدول کې ښه ایدلای شو

څلورم جدول:

په ۱۷۹۳ - ۱۷۹۴ کلونو کې *ددولتی عایداتو یوه برخه چې هر کال دامپراتورۍ په بیلو بیلو ولایتو کې جاګیر دارانو ته ددولت له خوا ورکول کیده.

| ولایتونه | عمومي عایدات د زرو روپیو په حساب | شاهي خزانې | جاګیر دارانو ته: د زرو روپیو حساب | ٪ |
|---|---|---|---|---|
| کابل | ۹۹۵ | ۲۶۵ | ۲۵۵ | ۲۶ |
| چاریکار او پنجشیر | ۲۱۰ | ۱۰۰ | ۶۵ | ۳٤ |
| کندهار | ۹۶۱ | ۲۱۰ | ٤۲۰ | ٤۳ |
| هرات | ۱۱۸۱ | ٤۲۱ | ٤۵۰ | ۳۹,۵ |
| ملتان | ۶۷۳ | ۲۵۵ | ۳۲۳ | ٤۸ |
| داسماعیل خان دیره | ۲۹۹ | ۱۲۰ | ۱۶٤ | ۵۵ |
| کشمیر | ٤۰۱۸ | ۲۲۵ | ۶۲۸ | ۱۵,۵ |
| دغازي خان دیره | ۱۹۷ | ۶۷۰ | ۳۲۰ | ۳۰ |
| ښکارپور | ۵۹۲ | ۳۹۱ | ۱٤۵ | ۲٤ |

داخبره هم دپام وړده ،چې دکندهار په ولایت کې چیرته‌چې دراڼي سردارانو قدرت اونفوذ زړلود ، دهغه‌ولایت پوره‌نیمایي‌مالیاتي‌عایدات‌د وی خانوته‌راګرځول.

یا په بله وپنا په همدغه وخت کې (۱۷۹۳ کال کې) دحکومت‌لوړ مالیې‌نیمایي برخه دوي‌خوړله ، اوددولت خزانې ته دجایګیر دارانو په تناسب‌د وحلی کم عایدات راتلل . په هرات کې هم‌دجا یګیر دارانو جایدادونه ډیر زیات‌وو . دکابل په ولایت کې چې دلته دشاه قدرت نسبتاً زیات‌وو،دجایګیر دارانو جا یدا دونه او عایدات لږوو .مګراه‌بله پلوه دولتي خزانې ته دعایداتو قصیدی لوړه وه .

دامپراتوري په هندي برخو کې دجایګیردارانوزیات‌جایداد ونه په ملتا ن ، اسماعیل خان‌دیره اودغازیخان‌دیره کې‌وو. ددې سیمو جایګیرونه زیاتره‌دپښتنو فیوډا لانو‌یابلو چستاني خانانوته ور کړشوي‌وو .

د۱۹ پیړی په‌اوسړیو کې چې په‌هره‌اندازه پښتنوخانانودولتي محکوم‌الیا تی عایدات تر لاسه کول . په هغه اندازه ددراڼي شاهانو او قبیلې نفوذ په‌هیواد کې کمیده ، اوامپراتوري مخ په خوړ تیا کښیده .

# شپږم فصل

## پوځ او پوځي سیستم

ددرانیانو په امپراتورۍ کې چې موسس یې احمد شاه درانی و، د پښتني ټولنې ټولنیز او وته یزې ملتتګ په سوبو پورې تړلی وو.

د پښتنو قبایلي خانانو ترمنځ دفیودالي اړیکو پرمختیا او وده یوراز نه وه. دا مهرا توری دجوړیدونه ورومته هم، د پښتنو خانانو دومره اقتصادي او سیاسي قدرت نه درلود چې په مستقیم او هرګند ډول دقبایلو استثمار ته زړه ښه کړي او ددوی مالونه ترلاسه کړي. دغه خانان اړوو چې د قبیلوی ژوند عنعنو ته سرټیټ کړي، ددې لپاره چې خانان و کولای شي، په زیاتیدونکو طبقاتي تضادونو باندې ماسك (پرده) واچوي اود قبایلو ساده غړیو ته داموقع ورنکړي چې له ناخوښۍ یې زړه چاو دنې ته ورسیږي، نو خانانو زیار وایسته چې دقبایلو پام دفتوحاتو لوري ته را واړوي، پدغوفتوحاتو کې پښتنو اشرافو که له یوې خوادخپلې ا ښنده بډاې توب خوبونه لیدل، نوله بلې خوا یې په همدې وسیله سره غوښتل چې پښتنې ټولنه کې اجتماعي تضادونه که ورکولای نه شي نوکمزوري خو یې خامخا

فتوحاتو په بهای کې د بېر زیات غنایم د سوبه‌نو لاس ته راتلل، چې په دې لړ کې طلا، زیورات، مرغلرې او د ګاڼو یو پادې شاملې وې. د جنګي غنایمو بوه برخه په مسید دول د پوځونو په ساده غړیو باندې ویشل کېده، د همدې غنایمو اړاره د قبایلو معمولي کسان په زرګونو پوځونو ته راتلل. په هره اندازه چې پښتني توانه کې فیوډالي مناسبات وده کوله، په هغه اندازه د قبایلو عادي غړي پوه په ځمکه باندې د ملکیت حق له لاسه ووت، او دوی اړوو چې د ژوند کولو لپاره د نورو لاروچارو په لټون کې شي. (۱)

---

۱- د امپراتورۍ په اوږد پخوو لایتونو کې د احمد شاه فتوحات د پښتنو د ډېرو قبایلو په همیشته کېدو سره بدرګه کېدل، او په دې جریان کې طبعاً د ځمکو د ترلاسه کونې موضوع هم شامله وه.

(M. Elphinstone, An account of the Kingdom of Kabul, and its dependencies, in Persia, tartary, and India; compris ing a view of the Afghan nation and a history of the Dooraunee monarhy, London, 1815, P. 311).

د ځمکو د ترلاسه کونې موضوع په عمومي ډول د جاګیر په بڼه ترسره کېده چې د غه جاګیرد قبایلي خانانو لپاره نږدې داداري ویش بڼه درلوده او هم خان د خپلې سیمې شخه سالیه هم ټولوله، د کندهار په ولایت کې د مثال په توګه دراني خانانو ته چې کوم قدرت ورکړ شوی و، د هغه شخه د نورو کسانو د ځمکو په لاس ته کولو کې پوره کار اخیست او د دوی د ځمکو زیاته برخه هغه جایداد و، چې د نور وشخه یې لاس ته کړی و.

(Henry C. Rawlinson, Report on the Dooranee tribesdated 19th

داتــه ددې خبرې ګول هم ضرورد ی چې ددرانیانو په امپراتورۍ کې دپښتنو او غیرپښتنو لپاره ددې فتوحاتوعواقب یو ډول نه وو . دپښتنو په سیمو کې دغو فتوحاتو دفیوډالي مناسباتو پیدا ښت جریان لا پسې چټک کړ، د پښتنې قبایلو خانانو په سیمو کې دفیوډالي ملکیت ریښې لا پسې ټینګې شوې او ویلای شو چې په عمومي ډول فیوډالان دیوې طبقې په توګه لاقوت اخلي، داچې تبیلوی راشه درشه په فیوډالي اړیکو اوښتل ، البته داکار په خپله یو مترقي او یو تاریخي ګام و ، نو له هم دې کبله دهغوټولو تضادونو سره سره چې ددرانیانودامپراتورۍ په زمانه کې شته وو، بیاهم دغې دورې دپښتنو په تاریخ کې ژوراغیزدرلود. یا په بله وینا که دپښتنوفتوحاتو نتیجې دپښتنودتاریخ دپرمختیالپاره ګټورې وې، نودپښتنو دولت ګاونډیو خلکو لپاره یې هیڅ ګټه نه درلوده . د ځکه پښتانه دتوانیز ـ و نه یې پرمختګ له مخې دخپلو ګاونډیانو نه دپروروسته پاتې وو ،اودغوسو بودوی ته بې له استبداده بل هیڅ شی نه شوای ورکولای .

داتلسمې پېړۍ په دوهمه نیمایي کې د پښتنو فتوحاتو دزندکورنۍ ته داموقع ورنکړه چې ددوی تروا کمنۍ لاندې په ایران کې متحد حکومت منځ ته راوای. په په منځنۍ اسیا کې منګتیا نود دولت ټینګوالی مانع شول اوهمدارنګه پښتنو په پنجاب کې سکانو ته داموقع نه ورکوله چې ځانګړی دولت جوړ کړي. د پښتنو اوسکانو ترمنځ اوږده خونړې جنګونه ، داحمدشاه درانی په لاس دمرهټیانو ټوپنا کول ، یا په بله وینا دټولوجنګ (دټولو په مقابل کې) ، دمارکس (۲) په وینا هندوستان داسې کمزوری کړ چې بالاخره په هندوستان کې دانګریزانولپاره ئې دفتوحاتو شرایط برابر

کړل او په پای کې د هند نیمه وچه د برتانیې ښکار شوه (۳). د درانیانو د امپراتورۍ په لومړیو اس کلونو کې ډېرې پوځ کښۍ وکړې، په دغه لړ کې اتلس واره شمالي هندوستان ته متوجه وې (۴).

لویدیز ایران او سویلي ترکستان ته هم څو ځلي د پښتنو پوځونه ننوتل.

د دې جنګونو په موده کې د پښتنو قوي پوځ او پوځي سیستم منځ ته راغی. هغه اروپایانو چې د درانی پاچاهانو پوځونه یې د ایراني او هندي پوځونو سره پرتله کول دا خبره هم کوله، چې افغاني پوځونه د جنګي صفاتو له مخې د نورو ټولو پوځونو څخه لوړوالی درلود (۵).

مونږ په مخکې خبرو کې دا خبره وکړې وه چې د پښتنو دولت د درانیانو په دوره کې د اداري او دولتي نظام له مخې دوه اړخونه درلوده، د غه صفت په ټولنې دوره کې

---

۳ـ دلته دا خبره باید وشي چې ځینې روستي افغاني مؤرخین دې نتیجې ته راغلي دي چې هندوستان ته د احمدشاه پوځ کشیو انګریزانو ته دا موقع په لاس ورکړه چې هندوستان په اسانه سره ښکار کړي، د مثال په توګه دغه لاندې کتاب وګورئ:

(Abdul Hadi Kamal, Das Agrarl and Afghanistan und seine Zukunft, Zurich, 1954, S. 17).

۴ـ په هندوستان باندې د پښتنو پوځ کښي د پورته شمیر څخه هم زیاتې وې. دا ځکه چې په یادشوو لښکرکښیو سربېره چې په خپله پادشاه د دوی په سر کې ولاړو، یو لړ نورې پوځ کښۍ هم دیادوړ دي، د کومو په سر کې چې نور پښتانه سپه سالاران ولاړ وو.

د مثال په توګه د تیمورشاه د سلطنت په دوره کې د پښتنو پوځونه د مدد خان تر قوماندې لاندې، څو ځلې هندوستان ته ورننوتل.

د پوځ لپاره هم په ګوته کولای شو، کوم چې احمدشاه دراني په لاس جوړ شوی و. دغه پوځ یو تاکلی مرکزی میکانیزم نه درلوده، بلکه د منظمو او غیرمنظمو ټولګیو څخه جوړ شوی و.

دا په دې معنی چې دیوې خوا په پوځ کې منظم عسکري ټولګی شامل و، نو دخاناتو ایله جاری عسکري ټولګی هم په کې راتلل.

دمنظم پوځ (فوج نظام) هسته د دغه سپرو ګارد څخه جوړېده چې په (غلام خانه) یا «غلام شاهی» سره مشهورو. دغه «غلام خانه» په اول کې د هغو عسکرو څخه تشکیل شوې وه چې نادر افشار سره ئې نوکري کوله، او بیا د غه عسکر احمد شاه دراني ته د نوکرۍ لپاره راغلل. «د غلام خانې» تقریباً دریمه برخه دقزل باشانو څخه جوړه شوې وه، دمرکز هستې عسکر هریو دزړور توب او قوت له مخې د رستم او نار یمان سره پرتله کیدلای شول (٦). څه موده وروسته دغه ځانګړی ګارد ته عیسویان، ارمنیان او ګرجیان هم شامل شول، کوم چې د ایران او عربوله پلوه افغانستان ته را تیر شوی وو. تیمور شاه دخپل سلطنت په موده کې په دغه ګارد کې تاجکان، جونګار- کال میکیپان هم ورشامل کړل. چې ده ته د بلخ نه را وستل شوی وو. پدی ګارد کې مریان هم و. دغه مریان یوڅه بادشاه را نیولی وو، او یوه برخه یې د بلوچستان بیګلر بیګی له خوا ده ته د سوغات په توګه ورکړ شوی وو. د نولسمې پېړۍ په لومړیو کې د شاه شجاع د سلطنت په دوران کې شاهی ګاردونوکی هزاره ګان هم شامل وو، چې

شمیرئي پنځوسو و کسانو ته رسیده (۷). د تیمور شاه د سلطنت په دوران کې اګر چې په شاهي ګارد کې یو شمیر پښتانه ساکزیان هم وو. سپه سالار سردار سرداران مدد خان هم د ساکزیانو له قبیلې څخه وو، دا ویلای شو چې د دغه ګارد اساسي قوه د ایرانیانو، تاجکانو او نورو غیر پښتنو تبرونو څخه جوړه شوې وه.

د دغه ګارد غلامان غړي چې د خپلو هیوادونو څخه بالکل لېرې و، نو له اداره یې د پښتون بادشاه په لاس کې وه. د ګارد غړي د پښتنو خانانو او همدارنګه د قبایلو سره هیڅ ډول اړیکې نه درلودل، یوازې د خپلو و سلو تابع وو، کومې چې د پښتون بادشاه په امر سره پکار لویدلې او د پادشاه اساسي تکیه هم په دغه ګارد پاندې وه.

د غلام شاهي ګارد تقریباً دریمه برخه د منظمو پوځونو څخه تشکیل شوې وه. د غلامانو یوه برخه په دایمې توګه د پادشاه څنګ سره ځای درلود، چې هغې ته «رکابي» ویل کیده. د منظمو پوځو په منځ کې یوه ځانګړې ډله موجوده وه، چې د هغې عسکر په اوښانو سپریدل او د دوی وظیفه داوه چې د پلیو عسکرو سره د

7—G. forster, A Journey from Bengal to England. Vol. II, P. 86; M. Elphinstone, An account..., p. 322—323, 486, 559; J.P. Ferrier, History of the Afghans, London, 1858, p. 98 99.

محمد حیات خان، حیات افغانی، ۲۷۱ مخ، فیض محمد، سراج التواریخ، اول ټوک ۵۶ مخ، کریسانف میترو پالیت نووا پتراسکي، د منځنۍ اسیا هیوادونو په

سینډونو څخه په پورې وتو کې مرسته وکړې(۸) .

سپاهیانو اصلي طلایي کمر بندونه په ملاتړل، زرینې خولۍ به په سروی چې هرې یوې خولۍ ته څو ټانټۍ ورا چوړل شوې وې. د منصبدارانو پټکي د عسکرو سره په رنګ کې توپیر درلود. د رنګ سربېره منصبدارانو په پټکیو کې بڼې تومبلې. ځینو د لوړو رتبو عسکري منصبدارانو ته د زیات زړورتوب له کبله دا اجازه ورکول کېده چې د بڼو په منځ کې الماس هم کېږدي(۹). په ۱۷۶۱ کال کې احمدخان بنګښ ته دا ډول نښان ورکړ شو. د دې نښان ورکولو وجه دا وه چې احمد خان بنګښ د مرهټې منصب دار ابراهیم خان ګاردی حمله چې د شپې له پلوه یې په ښېټنو کړې وه ورشنډه کړه او مقابل لوري ته یې نه یوازې د حملې امکان ورنکړ، بلکه د ډېر تاوان سره یې ماتې وخوړه(۱۰). د مخه هم وویل شول چې د بلوچستان بیګلربیګي ناصر خان ته د خاص محبت له پلوه دا اجازه ورکړ شوې وه. چې په پټکي کې دوې په الماسو مرصع شوې بڼې وتومبي، پخپله احمد شاه دراني هم دا ډول بڼې تومبلې. د ګارد عسکري ټولګي یو د بل سره د سره لباس په رنګ او موډ توپیر ګېده.

له بلې خوا د هر ټولګي د عسکرو د نېزو په سر کې د بیرغونو په رنګ یو له بله بېلېدل. د شاهي ګارد غلام خانې د یوې برخې عسکرونوم دسته و.

---

۸- غبار، احمد شاه بابای افغان، ۵۰۱ مخ

(9) (Samin) Ahmad Shah Abdali, and the India Wazir

په هره داسې برخه کې دولس سوه سپاره عسکر په نوکرۍ بوخت وو (۱۱). ګارد دسپارې اردو قوماندان ته «قول راغاسی» ویل کېده، (قول) د مرېې معنی لري.
د پښتنو په پوځونو کې پلي عسکر لږ وو. ویلای شو چې د دوی ټول شمیر د منظمو عسکرو څلورمه برخه کېده، ج. فاسټر، لیکي: «پلیو عسکر وته دومره په لوړ نظر نه کتل کېدل او تقریباً له پامه غورځول کېدل» (۱۲). د پلیو عسکرو په برخه کې تر ټولو ستر ټولګی دایراني اجیرو عسکرو وو، چې هغوی ته به «تفنګچي» یا «زاېرچي» بلل (۱۳). د دې ارد و عسکر داسې فکر کېږي چې تش په نامه پلي یادېدل په حقیقت کې دوی په اسونو سپرېدل او «سپاره پلي و و»، په هر ډول له هغو څلو پښتو زرو افغاني عسکرو څخه چې د پاني پت په نښته کې یې ګډون درلود، د «۳۰» زره آسونه یې درلودل (۱۴). د احمدشاه دراني ټولواکې په دوره کې د دې اردو قوماندانې نواب خان دراني ته سپارل شوې وه (۱۵). د منظمو پلیو عسکرو په ټولګیو کې

---

11—Casi Raja Pundit An account of the Battle of Paniput and of the events leading to, it (Asiatic Researches) Vol. III (Calcutta), 1792, p. 104; ("Akhbar-ul-Muhabat).

دغه موضوع په دغه کتاب کې وګورئ.

H. M. Elliot-John Dowson, the history of India, Vol. VIII), p. 398.

12—G. Forster, A journey from Bengal to England..., Vol. II P. 85.

13—Casi Raja Pundit, an account of the battle. of Paniput..., P. 104, 108, 139.

۱۴— «اکبر المحبت» د معلوماتو له مخې، ۳۹۸—۳۹۹ مخونه.

زیات شمیر غرني تاجکان وو، چې د کابل شمالي او شمال ـ ختیځ اوړي ته پراته وو، دغه ټولګی چې زیاتره برخه یې د غرنیو تاجکانو څخه نیولې وه، په افغاني اردو کې تر ټولو ښه عسکر هم دوی وو. غرني تاجکان نه یوازې د افغانستان اردوګانو کې په عسکري بوخت وو، بلکه د هندي او منځنۍ اسیا پوځونو کې زیات شمیر په نوکرۍ لګیاوو (۱۶). دوی چې هر پوځي اردوګاه ته مخه کوله په ډېره خوشحالۍ سره په پوځونو کې منل کیدل، دا ځکه چې د دوی میړانه ډېره مشهوره وه. احمدشاه دراني د سلطنت په دوران کې افغاني پلي پوځ یو کوښنی ټولګی درلود چې د غوی

---

۱۶ ـ د مثال په توګه دا اتلسمې پېړۍ په وروستیو کلونو کې دا لیم خان خوقندي په پوځ کې ۲۷۰۰ تاجکو د توپچیانو په صفت کار کاوه، چې دوی اصلاً د ننني افغانستان د شمالي سیمو اوسیدونکي وو. د دې موضوع لپاره دغه کتاب وګورئ: (پ. ایوانوف. قزاقیان او خوقندي سرداري د ۱۹ پېړۍ په سر کې د قزاقیانو اړیکې، «د شوروي اتحاد د علومو اکاډمۍ د ختیځ پوهنې انستیتوت یاداښتونه» ۲۷ ټوک، مسکو ـ لنین ګراد، ۱۹۳۹، ۱۸ مخ، قاسم خان چې د موګاني بېګم له د ویستانو څخه و، په ۱۷۵۴ کال کې یې وکولای شول چې دري سوه کسه د بدخشان څخه د بلې اردو په نامه و نومول. د دې موضوع لپاره لاندې کتاب

دجامسفورم دبریتانوی تولکیوپه دول وو (۷۱)، له دغو بنیادی تولگیونه پرته په افغانی اردو کې نور کوښی تولګی هم وو. یوله دغو تولګیو څخه «قاشقچی» «نوکریوال» تولګی و، چې دپادشاه دسرساتنه یې کوله، داحمدشاه درانی داولادی په وخت کې دغه تولګی له هند یانو څخه جوړ یده. دد وی جامې هم دا روپا یا نوپه ډول وې (۱۸).

«قاشقچی» ته «قاشقچی باشی» ویل کیده (۱۹) محافظانو، قاشقچیانو د سولې

---

17—James Rennell, Memoir of a map of Hindustan or the Moghul Empire, with introduction, second edition, London, 1792, p. CXXIII.

د دې لپاره چې افغانی عسکر وته دارو پا یا نو په خیر د ریشې جوړې کړی له سند څخه انګلیسی تو کران افغانستان ته راوړل کیدل، په سند کې انګلیسی تجارتی موسسې په ۱۷۵۷ کال کې جوړې شوی وی او تر ۱۷۷۵ کال پورې یې پایښت و کړ، د دې موضوع لپاره دغه کتاب و ګوری:

Mohammad Jasin, the Talpurs of Sind (the Indian historical quarterly), Vol. XVII, 1941, No. 1, March p. 36-37

18—M. Elphinstone, An account... P. 532.

۱۹ — دقاشقچی نوموونه ښایی له مغولی څخه اخیستل شوی وی. چنګیز خان او د هغه مخومات هم غوره پوځی تولګی دساتونکو «قیشقیتن» په نامه سره ارل، د. ۱۲۵۰ کال مغولی تاریخ، لومړی توک، مسکو- لنین ګراد، ۱۹۴۰، ۱۷۰، ۱۷۱، ۱۷۳، ۱۹۱، ۱۹۷ مخونه، دزولاته اردین خانانو ساتونکو عسکری ګارد وته «قاشیق» ویل کیده، ب ګریکوف، یاکو بفسکی طلایی عشیره، لندن ګراد، ۱۹۳۷، ۹۷، مخ، صفویانو لومړی ځل د «قاشق چیانو» تولګی په ۱۶۵۳ کال کې ددوهم عباس په زمانه کې جوړ کړی و، لومړی دغه تولګی له ۳۰۰ عسکرو څخه جوړیدل چې په دوو پالونو ویشل کیدل، هرمهال به دری ورځې نوکریوالی کوله.

"Tadhkirat-al-Muluk A Manual of Safavid Administration

په شپو ورځو کې دپادشاه دربارساتنه ، مګر دپوځ کښېدو په وخت کې د هغه دقرارګاه ساتنه ئې په غاړه اخیسته ، اوه قاشق خانه » یا هغه ځای چې دپادشاه دمحافظانو یکې اوسیدل ، ددولت رئیس هستوګنځی ته نژدې و. دوی چاته اجازه نه ورکوله چې هلته ورشي ، ان دپادشاه نژدې دوستانو ته هم. د ۱۷۸۸ کال په منی کې شاهزاده همایون چې پخوا د کندهار حکمران و ، کله چې کابل ته راغی غوښتل یې چې دخپل پلار تیمورشاه ارمګاه ته ورننوځي ، خوساتونکو دااجازه ورنکړه هدې وخت کې دمحافظانو او همایون ترمنځ شورپکت پورته شو ، چې په پای کې همایون ونیول شو او بیا یې تالاشي وشوه ، د تالاشي په وخت کې له همایون سره چاقو پیداشو چې د همدې چاقو په پیدا کیدلو سره نوموړی دتیمور شاه په امر بندي شو (۲.) احمد شاه دراني د ساړایي ژندارموتولګی جوړ کړل چې هغوی ته «نسقچي» ویل کیده. دغو تولګیو که له یوې خوا دپوځ کښېدو په وخت کې دپادشاه ساتنه کوله نو په یوه مهال کې دپادشاه اوامر هم ددوی په وسیله تراجراالاندې نیول کیدل. ددې تولګیو دعسکرو یوه وظیفه دا وه چې د تښتې په وخت کې د پوځونو شاته بې موقعیت نیوه او کله که فرضاً کوم عسکر دا کوښښ کړی وای چې له جګړې نه وتښتي نو هغه یې واژه .

په پای پښت کې د جګړې په وخت کله چې دمسلمانانو پوځونو په شاراتګ پیل وکړاودوی ونه کولای شول چې دمرهټیانو ګوزارونو او بریدونو ته ځانونه ټینګ کړي ، نو هدې وخت دنسقچیانو یوزرو پنځه سوه کسیز تولګی د پوځ شا ته وا ستول شول چې هلته له امرسره سم هرڅوک چې دجګړې څخه تښتي وو ژني .

دنسقچیانو بل پنځه سوه کسیز تولګی د پښتنو پوځونو کمپ ته واستول شو ، هلته یې ۸ زره کسان پیدا کړل چې له جنګ څخه یې په یوه او بله بهانه ځانونه

پټ کړی و «نسقچیانو دوی اړ کړل چې وسله په لاس د جګړې میدان ته راشی.
دنسقچیانو په وسله کې جنګی تبرګی، توری اوخنجرونه راتلل (۲۱) دپښتنو شاهانو پوځو کې دنسقچیانوتولګیو قوماندان ته «نسقچی باشی» ویل کیده، د«نسقچی باشی» امرخر کار باشی داستخباراتو څانګی امراو په یووخت کی دده تر کنترول لاندې داسونو اوپلیوپسته رسوونکو څانګی وې. سپروپسته رسوونکوته ددولتمخی سواریا «چاپار» اوهمداډول قاصدان (۲۲) هم ویل کیده. دپښتنوپه پوځونو کی له پورتنیو یادشو یوتولګیو نه پرته نورتولګی هم وو چې هغه د ترانسپورتی او کورنیو چارو دسمبالو لوتولګی وو. ددغوتولګیوپه سربانديې اردو باشی ولاړوو، اوددوی وظیفه داوه چې دپوځ کښډوپه وخت کې دشاهی قرارګاه سمبالونه په غاړه واخلی، په پوځ کی سترروال هم توپخانی په غاړه درلود، چې په دووبرخویعنی درنه اوسپکه توپخانه باندې ویشل کیده، دټولی توپخانی امرته توپچی باشی ویل کیده. د احمدشاه درانی دسلطنت په دوره کی دغه پوړ ی لومړی یونفر چې عثمان خا ن نومیده نیولی وه اوبیا رحمن بارګزی ته وسپارل شو ه.

دتو پخانې بنیادی قوه هم په هغه وسله باندې ولاړه وه چې هغې ته به زمبوریك «شترنال» اوهمدارنګه «شاهین» هم ویل کیده. کله چې ګریسانف د تیمور شاه درانی دپوځ په باره کې خبرې کوی، نو هلته د«زمبوریك» وسلو په باره کې دامې

---

۲۱- غلامحسین مقتدر، «تاریخ نظامی ایرا ن، ۳۶۰ مخ دنسقچیا نو ټولګی دمغولو اوصفویانو په پوځو کې هم وو، ددوی وظیفی ددرانیانو په امپر اتو رۍ کی دنسقچیانوغوندې وې، دمغولو په پوځ کې ددوی بیاوونکی نښه داوه چې دوی دری

ليكي: «زمبوريك وسله د پښتون بادشاه په پوځ كې ترټولو ستره وسله ده (۲۳).
څرنګه چې دغه ډول وسله ډيره ارزښتناكه وه نو پدې توګه په توپخانه كې
كومو عسكرو چې د غه وسله كاروله د هغوی لپاره ځانګړې غوره، ميړني او دوېساوړ
عسكر راګرځول كيدل. د احمدشاه دراني په پوځونو كې «زمبوريك» وسلو ارو نږو شمېر
څلورو زرو كسانو ته رسيده. د سپكې توپخانې قوماندان شاهينچي باشي نوميده ده
مقام په اردو كې په ميراثي توګه د باركزي ټبرخانانو ته وركول كيده (۲۴).
د «زمبوريك» وسلو عسكر په او ښانو باندې يو بل ځای ته ورلیږديده او ښ له وسلې
نه پرته دوه دوه كسه عسكر، څلويښت ګولۍ چې د هرې ګولۍ تول ۶۰ - ۸۰
ګرامه كيده، وړل. عسكرو ګولۍ شول چې آن د اوښ د تګ په وخت كې د «زمبوريك»
نه ډزې وكړي (۲۵). د ګرمن ګولومبري چې د «زمبوريك» وسلو په باره كې ځانته
جنګي تاريخي (۲۶)، څېړنې ترسره كړي دي ليكي: چې د كندهار غلجيانو لومړی
ځل پدې موخه شول چې زمبوريك د اوښ په كته باندې وتړي او د تګ په وخت
كې هغه وسله په جګړه كې په كار واچوي. (په ۱۷۲۲ كال د ايران د فتحې په وخت
كې د جنګ په ډګر كې «زمبوريك» وسلې زياتره د توپخانې شاته ځای په ځای كيدې.
د پانی پت په جګړه كې زمبوريك وسله د توپخانې شاه ته د رول شوی وه.
د كرنال په جګړه كې زمبوريك وسله د توپخانې
مخكې ځای شوی وه. (۲۷). كله كله د دې لپاره چې

۲۳ - ګرېسانف، ميتروپاليت نوا پټراسكی، د اسيايي هيوادونو په باره كې، ۱۱ مخ.
24—M. Elphinstone, An account..., p. 335.
۲۵ - د روويل په ۱۸۱۲، ۱۸۱۳ كلونو كې پارس ته سياحت او هم وګورئ
Saiyid Ghulam Ali, Nigarnama-i-Hind, p. 398.

دښمن وغولوی. دغه وسلې د ډلو او سپرو عسکر وشاته پټولې، ددې وسلو زیاتې چټکتیا دا موقع برابر وله چې دښمن ډېر نژدې ځان ته راپرې نږدې او په یوه ټاکلې واټن کې یې وساتي. دغه واټن زیاتره د «زمبوریك» ګوليو له ویشتو نه ګرګندېده. «زمبوریك» باروتو دښمن ته درانه تاوانونه اړول. د پانی پت په جګړه کې احمدشاه درانی دوه زره «زمبوریك» وسلی لرلې او ددې وسلو رول له دې جګړې نه ښه جوتېدلای شي (۲۸). «د زمبوریك» وسلو زیاته اندازه داحمدشاه له زامنو سره په خپل وخت کی هم وه. تیمورشاه درانی په ۱۸۸۷ کال کې هندوستان ته مددخان دافغانی پوځ په سر کې واستوه، اوله نوموړی ښتون سپه سالار سره ۱۷۰۰ «زمبوریك» لرونکی عسکر و و. شاه زمان د جنګ په وخت کې ۲۶۰۰ «زمبوریك» په کاراچول او ۳۲۷۰ نوریې د احتیاط په ډول له ځان سره واخیستل. شاشجاع د «زمبوریك» وسلو ۷۰۰ دانې په اختیار کی وې (۲۹). درانی شاهانو سره ساراپی توپخانه دومره زیاته نه وه. داسې ګومان کېږی چې ددې وسلو کیفیت چندان ښه نه و، د پانی پت په جګړې کې دغه ډول څلوېښت دانې وسلې د ښتنو سره وې. احمدشاه او ده د جګړې متحدینو ټولو سره دا ډول وسلې او یا ۷۰ دانې کیدې (۳۰). د احمد شاه جانشینانو سره د دښتی توپو نوشمیران څو ځلې

---

28—Casi Raja Pundit, An account of the battle of Paniput

ف، سیمه نوا، د هندوستان په نیولو پاندی د ښتنو او مرهټیانو مبارزه او په ۱۷۶۱ کال کی د پانی پت جګړه، (د منځنی ختیځ هیوادونو په تاریخ پاندې نوی مضمونو نه) مسکو، ۱۹۵۱، ۹۵ مخ.

ترسپکو تو پوزو کم و. شاه زمان په لویه امپراتورۍ کې ۶۳۰ توپونه لرل، په اسې حال کې چې ددغه پادشاه د«زمبوریکو» وسلو اندازه څوځلې زیاته وه.

د دراني پادشاهانو په زمانه کې د پښتنو پوځونو کې د کلابندۍ درنې وسلې هم وې. د مثال په ډول د احمد شاه لپاره په ۱۷۵۱ (۱۱۶۴) هجري کې په نیشاپور کې لوی توپ جوړ کړشو، چې د گولۍ درنښت یې شل«. ۲» طبریزي منوته رسیده (۳۱)

د احمد شاه بل لوی توپ لاهوري زمزمه نومیده، چې په ۱۷۵۷ کال کې یې د وزیر شاه ولي خان په امر سره جوړ کړی وه، دغه دژیړو توپ ۴ ۱ پوټه وه او ۵ رم انچه اوږد والی یې لاړ (۳۲)، ددغه نومیالي توپ ددرمې د قطر لویوالی ۵ ، ۹ انچو ته رسیده او اوس د لاهور په موزیم کې ځای ورکړ شوی دی، درانه توپونه له یوه ځای نه بل ځای ته په اسونو، سنډانو او کله کله په پیلانو کشول کیدل.

د توپخانې په وسلو سربیره داحمدشاه په پوځ کې یوډول د توغندۍ دستگاوې چې ارادي بان نومیدلې هم وې. داسې فکر کیږي چې ددې وسلو کارونه پښتنو له هندیانو څخه زده کړې وو، ترکومه پورې چې ددې وسلې په باب له مونږ سره کوم معلومات شته، دغه توغندی داوسپنې نل ته ورته وو چې د نل قطریې ۷،۳ سانتي متره او اوږدوالی یې«. ۳» سانتي مترو ته رسیده.

توغندی یاد او سپني نیچه دبانس په دوه درې متري اوږدې څانگې پورې ترل کیده، کله کله د توغندي په تنه پسې پولادي شلگی هم ترل کیده. دغه توغندی به لاس باندې نښې ته سمیده او تسمه باندې ورته اور ورته کیده، توغندی

---

۳۱ــ فیض محمد، سراج التواریخ، لومړی توک ۱۵، مخ

زرمتره لري نښه ویشتلی شوه . ددغو توغندو استعمال دومره ګټه ور به اوزیاتره د دښمن په مقابل کې د پلوو اویا سپرو ګڼ تولې ته ورغورځول کیده ، د دود له مخې اوښانو بالدې له یوځای نه بل ځای ته لیږدول کیدله ، اوښ یو توغندی او یو عسکر وړاو یا په هغه کرا چیو کې ګشول کیده چې په سنه اکانو پورې تړل شوې وې . د ۱۸ پېرۍ په دوهمې نیمایۍ کې ایکو اکو ، د او ولیکل چې دغه توغندی مخامخ لورې جنګ کو اکو د خرابولو لپاره ډیر اغیزمن وو ، مګر دا چې دښمن ته بې ډیر تاوان رسولای وای ، لدې پلوه دومره ورانوونکی جنګی وسله نه ګڼل کیده (۳۳) .

د ویشتو په وخت کې د توغندی د کول او د هغه لار ښو نه ضروری کار و . ددې وسلې په کارونو اوویشتو کې ترټولو پښتنو روهیلی پښتانه ډیر تکړه وو (۳۴) . ددې وسلې استعال لپاره یو ضروری کار هم د لاس خوځولو چټکتیاوه . هغه جګړن ته چې ویشتو سره بې سرو کار و «بدر» «یا بنداز» ویل کیده .

په اردو کې ترټولو کوچنی ګروپ یز واحد لس کسیز ټولګی و ، چې «د هباشی» ترقوماندې لاندې و ، د پنځوس کسیز عسکری واحدونو څخه «بلوك» جوړیده ، د بلوك اداره «پنجاباشی» ته سپارل کیده د دوو بلو کانو څخه ټولی جوړیده ددغو سلو کسو اداره (یوځ باشی) په غاړه اخیسته .

---

33—A. Dow. the historyof Hindostan, vol. II. London, 1770, p. 386.

دغو تولیو څخه کندک جوړېده، د کندک امرته «مینګ باشي» ویل کېده(۳۵).
«په رساله» یا «قطعه کې معمولاً ۳–۵ زره عسکر راتلل او د څو کندکونو څخه جوړېدل، د مثال په ډول د شاه زمان په پوځو کې د التفات خان خواجه سرا تر قوماندې لاندې ۹۰۰۰ منظم عسکر حسابېدل، او د یوسف علی خان خواجه سرا رساله له ۳۰۰۰ عسکرو څخه تشکیل شوې وه. د دغو پوځونو قوماندانانو د دود له مخې د (امیر لشکر) رتبې درلودې. د جنګ په وخت کې له دې پوځي واحدونو څخه داسې اردو جوړېده چې د عسکرو شمېر یې ۱۲–۱۸ زرو پورې رسېده، د داسې اردو قوماندانی د جګړې په وخت کې مشهور سردارته سپارل کېده. د منظم پوځ منصبدارانو ارتباط له درباریانو او درباره نژدې کسانو او خواجه ګانو څخه جوړ شوی و. عسکر منصبداران بشپړه د پادشاه له خوا ټاکل کېدل او دوی ته د ټاکنې په وخت کې فرمان ورکول کېده او په هغه فرمان کې منصبدار ته تنخوا او ده ته د بخشش شوې وسلې ډول ټکې لیکل شوی وو، په پوځ کې معلومې درجې په میراثي ډول د راڼي سردارانو ته ورپسې شوې وې. د لښکر کښیو په وخت کې هر سردار د لوی عسکري منصبدار او د خپلو ځانګړو نوکرانو له خوا بدرګه کېده. د احمدشاه دراني د سلطنت په دوره کې د دې

---

۳۵– عزیز الدین پوپلزایی، د تیمور شاه د پوځونو د عسکري منصبدارانو داسې ډله بندي کوي: په اردو کې تر ټولو لوړه رتبه د سپه سالار وه په سپه سالار پسې د غه لاندې عسکري رتبې راتلاې «امیر لشکر»، «اردو باشي»، «قولي راغاسي»، «صوبه دار»، «سپهدار» «بیګلربیګي»، «سرهنګ»، «سرتیپ»، «پنجاه باشي»، «بیست باشي» دهباشي. «عزیزالدین پوپلزایی، تیمور شاه دراني، ۱۶۰ مخ. مګر دا هم باید وویل شي چې په هغه دوره

سردارانو مزدورانو شمیر په پوځ کښېو کې کله کله د پوځ له اصلي شمیر څخه اوښت داسې اسناد هم شته چې د پښتنو په پوځونو کې داروپایي عسکرو او منصبدارانو ګډون هم ښيي.

ج. فاستر چې د ۱۷۸۳ کال په دوبي کې کابل کې و، د خپل انګریزي نسب پټاوه، داځکه چې نورو انګریز نه غوښتل د تیمورشاه سره د توپچي په توګه کار وکړي (۳۶). محمود الحسیني لیکي: چې په خراسان باندې د ۱۷۵۱ کال په پوځ کښېو کې د پښتنو لښکرو کې «فرنګي توپچیان» (۳۷)، هم ورسره وو. (همدغه موضوع باندې سلطان محمد خان دراني هم خبر ورکوي). م. الفنستون دا خبره هم کوي چې د پښتنو په پوځونو کې د تیمور شاه د تولواکۍ په دوره کې کوم یو جرمن افسر د اته نوکري لرله (۳۸). خو خبر داده چې د غو اروپایي افسرانو او عسکرو د پښتنو په پوځي ستراتیژۍ تاکتیک او یاد وسله والو قواوو په جوړښت باندې اغیزه نه درلوده.

د منظمو قواوو بنیادي برخې فوج نظام او شاهي ګارد د دود له مخې د دولت په مرکز کې ځای شوي وو. د امپراتورۍ په لویدیځو ولایاتو کې هرات هغه ولایت وو، چې هلته د دودله مخې پیاوړی پوځ ساتل کیده. د احمدشاه دراني د سلطنت په دوره کې د هرات حکمران ترلاس لاندې نژدې دوه زره عسکر وو، چې د غه شمیر عسکر ډیر ښه مسلح او په دایمي ډول هلته پراته وو (۳۹). شاه زمان د خپل سلطنت په لومړیو وختونو کې ښځلس ۱۵ زره عسکر په هرات کې اچولي وو، او شاه شجاع اته زره غلامان او درانیانو او ایماقو ټولګی هلته میشته کړي وو. د احمد شاه د سلطنت په شپوورځو کې د پښتني امپراتورۍ په هندي ولایتونو کې لاهور د عسکري پوځونو له

---

36—G. Forster, a. Journey from Bengal to England..., Vol. 11, P. 68

... Quellenstudien, S. 311.

پلوه ترنورو ولایتونو پر پېښور، خو دده د جانشینانو په وخت کې د عسکرو شمېر په ملتان او کشمیر کې له نورو هندي سیمو څخه زیات و.

د مثال په توګه د لاهور په ښار کې هغه وخت چې تیمورشاه د سکانو څخه بېرته واخیست، د مظفرخان سدوزي تر قوماندانۍ لاندې شل زره عسکر واچول شول(۳۰). د تیمورشاه د تولواکۍ په موده کې په کشمیر کې د پښتنو عسکري قواوو شمېر د پلیو او سپرو قواوو شمېر دروزرو کسانو ته رسېده (۳۱). د شاه زمان په وخت کې «د غلام سرور په وینا» په کشمیر کې د پښتنو سپرو قواوو شمېر «۱۱» زرو تنو ته رسېده او له دې نه پرته ۱۶۳ «زمبورک» وسلې هم هلته استول شوې وې. د شاه زمان په وخت هلته د پښتنې قواو شمېر په عمومي ډول ۱۶ زرو ته رسېده، پدې ډول ویلای شو چې شاه زمان د ټولو د رسمي قواوو اندازه چې دا مپراتورۍ په هندي ولایتونو کې یې ساتلې (۳۲) نیمایي یې کشمیر ته غورځولې وه، د نولسمې پېړۍ په لومړیو کې د پښتنو قواوو شمېر په کشمیر کې مخ په کمېدو وو، الفنستون لیکي، چې په ۱۸۰۹ کال کې د پښتنو قواوو شمېر په کشمیر کې ۸۶۰۰ کسانو ته راټیټ شو. د امپراتورۍ په نورو هندي ولایتونو کې د عسکرو شمېر په عمومي توګه کم و، او معمولاً حاکم یا صوبه دار د حکم لاندې تر ۲۰۰۰ زرو پورې عسکر راتلل.

د پښتنو د رسمي قواوې کله کله په تابعو سردارانو کې اچول کېدې. تر څو که له یوې خوا دغه سرداري له باندنیو یرغلو څخه وساتلای شي، او د بلې خوا په یوه وخت کې د هغه ځای حاکم په لومړنی کې وساتي. د مثال په ډول کله چې په ۱۷۵۵ کال کې احمد شاه دراني خراسان څخه ووت، او په مشهد کې یې د شاه رخ

ترځنګ (داشرا فو قول اردو) خپل عسکر ور برېښوده (۲ م).

په ولا یتونو کې چې کوم عسکر اچول شوی وو، کېدای شول چې د مربوطو سیمو څخه زیات کړای شي. په ۱۷۵۷ کال کې کله چې تیمورشاه په لاهور کې «د نظام» ـ په توګه وټاکل شو. در ستېزې قواوې چې نو موړې سره وې، یوه برخه د درانیانو عسکري تولګی وو، بله برخه قزل باشان او همدارنګه د هغې سیمې څخه د پر مسلمانان د عسکرو په توګه تیمورشاه په خپل پوځ کې ونیول (۳ م).

د پښتنو په اردو کې ۳۰ فیصده منظم عسکر او پاتې «۷۰» فیصده د غیر منظمو تولګیو څخه جوړ یده. غیر منظم پوځونه عموماً د خانانو سپرو تولګیو «خانان سواري» څخه جوړ شوی وو. د غه خانان چې د پښتنو اردو زیاته برخه ددوی له سپرو څخه جوړه شوې وه، د پښتني قبایلو رهبرانو، د قبایلو ایله جاړي، دځانګړو تورځنو سیمو په پوځي تولګیو، د تا بعو سردارانو عسکري ډلې او همدارنګه د ختیځ ایران شمالي هندوستان نیول شو یو برخو خانانو، امیرانو له سرباز انو څخه منځ ته راغلې وه.

د خانانو دسپرو تولګي د منظم پوځ په غیر دسولې په وخت کې د تیارسي په حالت وو. دغه تولګی په «برغ» سره یا دیدل او پخپلو کې د نژدې قبیلو

---

۳۲ ـ د روسیې بهرنی سیاست ارشیف، له پارس سره د روسیې اړیکې، ۱۷۵۵ کال

قو ماند انانو له مریوونواو نوکرانو څخه جوړ شوي وو ( ۴۴ ). هر عسکري تولګی دشمیر اندازه، هغه قوماندان ته د بخشش رتبه، ورکړ شوې ځمکې، تنخوا او همدار نګه د قوماندان عسکرې القاب په شاهی فرمان سره تیاکل کیدل (۴۵) . دخانانو عسکری تولګی دشمیر په پام کې ایولو سر بیره هغوی ته د «سر کردهٔ سواری» یا «خان سواری» رتبه ورکول کیده. خان کولای شول چې دخپل پوځ په برخه کې کوچنی افسران په خپله وټاکی .

د«بیرغ» هر قوماندان ځانګړې جنډه، دولونه او سورنا چیان لرل . له «خانان سواری» څخه د هیواد دبریدو نو، لارو، د و لتی تحویلخا نو د ساتنې لپاره کار اخستل کیده . د مالیې او باقیاتو تولوله بههم د دوی په غاړه وه .

عسکری لوی تولګی نه یوازې خانانو درلودل ، بلکه روحانی فیوډ الان هم پدې برخه کې لازیات پیاوړی وو. د پښتنو په اردوکې درانیانو مخنیو عسکری تولګیو ځانته پیل غوره مقام درلود ، اودحسین علی (۴۶)، په وینا هغوی ته غازیان درانی ویل کیده ،دد رانیانو مخنی پوځی برخه دپښتنو په اردوکې

---

۴۴ - دیو سفر یو «زیاتره خانانو او ملکانو مریان درلودل ، له دوی څخه ځینې خانانو او ملکانو تر سلو زیات مریان لرل» .له مریانو څخه د ساتو نکو کار اخیستل کیده، «مریانو په میړانه اوو فاداری سره دخپلو بادارانو ساتنه کوله» (H. W. Bellew, A gener al report on the Yusufzais, in six chapters with a map, Lahore, 1864, p.184).

۴۵ - دلوړې قوماندانې خان دورکړ شوی جایګیر او مستمری معاش

نژدې دولس زرو کسانو ته رسېده. له دې نه پرته دغو منظمو پوځونو په لړ کې
هم دراني خانانو عسکري ټولګي د سپرو په ډله اردو کې برخه لرله. هغه نا منظم
پوځونه چې لا ایله جاریو څخه جوړېدل پوازې د اړتیا په وخت کې د پښتنو
خانانو له ټولګیو څخه منځ ته راتلل. د احمد شاه دراني د هغه پر نسیپ له
مخې چې ویل به یې: «سربازان د لویدیځ او پسه له ختیځه» د پښتنو د پرې
سیمې له مالیاتو څخه آزادې وې. مګر په مقابل کې د جګړې په وخت د هغو
سیمو خلک اړ وو، چې په ټاکلې اندازه وسله وال عسکري ټولګي شاهي اردو
ته وړاندې کړي، هغه قبایل چې د مالیاتو څخه آزاد وو، بیا هم اړ وو
چې شاهي اردو ته عسکري ټولګي راولېږي. ګنګیاڼي، ورکزي، یوسفزي، اپنوځي د
خوست قبایل او نور(۴۷). ځینو قبایلو د سولې په وخت کې دولت ته مالیات ورکول. دوی
د جنګ په وخت کې دوی د مالیاتو نه علاوه شاهي اردو ته عسکري ټولګي هم ورکول.
د مثال په توګه مروتو د جنګ په وخت کې د عادي مالیې په ځای، دوه سوه په اوښانو
سپاره کسان شاهي اردو ته رالېږل. مرکزي حکومتونه کله کله اړ کېدل چې له قبایلو څخه
ایله جاري راوغواړي چې دغه پوځ ته «لشکر قومي» هم ویل کېده، دغه «قومي لښکر»
کله له رضا کارانو څخه جوړېده، او داسې هم کېده، چې خلک ورته په زوره راوستل کېدل.
په یوسفزیو کې له اړتیا سره سم د هرې قبیلې څخه یو پلی سرتمر او یا له دوو قبیلو څخه یو آس
او یو عسکر ټولېده. د ایله جاریو ټولولو لپاره باد شاه د قبایلو مشرانو ته فرمانونه رالېږل،

---

47—H.G. Raverty, notes on Afghanistan and part of Baluchistan: geographical, and historical. Extracted from

کله کله د ایله جاریو ټولیدو کار ولایاتو ته سپارل کیده. ولایاتو خلکو ته خبر ورکاوه چې په غزا کې برخه واخلي. په دا سې وختونو کې زیاتره کسان په خپله ایله جاریو ته راتلل.

د قبایلو ایله جاری د ټپو د ویش په اساس بانډې جوړیدله. هرې ټبې یا طایفې د عسکرو ځانګړې ټولګې جوړول، چې د غه هر یو ټولګی د خان یا ملک تر اداري لاندې و، دغه ډول ټولګی چې د بیلو بیلو ټپونه جوړ شوي وو، ټول سره یو ځای او یاد کوم مشهور درانی سردار تر اداري لاندې ورکول کیده، که کوم یو سړی کوښښ کړی وی چې د جنګ په وخت کې د ایله جاری نه غاړه وغړوي، د قبیلې خان او یا مشر هغه جریمه کاوه او یا یې بله سزا ورکوله، د قبایلو ایله جاری زیاتره د قبایلو غړیو غړو څخه جوړیدې، نو ځکه یې ډول له یو سره په عسکرو کې راتلل. دغو ایله جاریو څخه کله کله په اجتماعی کارونو کې هم کار اخیستل کیده.

اګر چې د قبایلو ایله جاری د شمیر له پلوه ډیر زیات وو، مګر دومره باید وویل شي چې جنګی ارزښت یې دومره نه ؤ. دا ایله جاری په اوږدو پوځ کښو کې ګډول ډیر ګران وو، دا ځکه چې دوی نه شوای کولای داوږدې مودې لپاره د کراو کښت کارونه پریږدي. ایله جاریو څخه ډیر په کار اخستل کیدای شو، هغه داوه چې دوی د دښمن پرغلونه په ډیر ماهرانه ډول شنډولای شول. دا هم باید وویل شي چې د «قومی لښکر» غړی په وسله دومره ښه نه وو سمبال شوی. کاشیراج پانډیت لیکی، چې په پانی پت کې د پښتنو نامنظمو پوځونو دو وسو یا دروسوزرو جنګیانو دومره وسله او اسونه درل لکه د احمدشاه «۹ ۲» نه ویشتو زرو منظمو سپرو عسکرو، د پلیو نامنظمو پوځونو په اړه کې تر ټولو ښه عسکر ختیځ افغانستان یعنی دمومندو، یوسفزیو، ختکو، محمدزیو

په وخت کې نامنظمو پوځونو د دولت مخې د کومکي عسکرو رول ترسره کاوه. کله چې منظمو پوځونو دښمن ته ماتې ورکوله د غه نامنظم پوځونه توري په لاس د ښمن هسې پسې اخیستل او هغه له پوره سره پوپنا کړي (۴۹). د نامنظمو پوځونو څخه به د دښمن په کلابندۍ او لوټ کې هم کار اخیستل. کله کله داسې هم کېده چې د غیرمنظمو پوځونو څه ناڅه ټولګی به چوپړ کې د دې لپاره اچول کېدل چې هلته د دوی څخه د پوځي خدمتونو کار واخیستل شي.

په ځینو نورو ولایتونو کې (ښکارپور، پنجاب) احمدشاه دراني پوځي سیمې جوړې کړې وې. د هغو سیمو خلک اړوو، چې دا اړتیا په وخت کې د منظم پوځ په ټولګیو کې وظیفه ترسره کړي.

دوی ته په هغه پوځي سیمو کې عسکري تمرین ورښودل شوي وو، دا هم باید وویل شي چې د دې پوځي سیمو خلک به هغه وخت کې جنګ ته رابلل کېدل، چې سیده هغه سیمې د جنګ او کله کله د سولې په وختونو کې افغان اردو ته د تا پېوسرداریو، خانانو او امیرانو له خوا عسکري ټولګي رالېږل کېدل. دا اړتیا په وخت کې احمد شاه دراني تر څو لېږغ لاندې له سر هند، پنجاب، سند، بلوچستان، دېره جات او جنوبي ترکستان څخه راغونډول (۵۰). د بلوچستان پلیو عسکرو د سولې په وخت کې په کشمیر کې له پښتنو ټولګیو سره یو ځای وظیفه ترسره کوله. او د هغه ځای سپاره عسکر (د بلوچستان عسکر) د ناصر خان بلوچ تر قوماندانۍ لاندې د احمدشاه دراني سره د پوځ کښېو په وخت کې برخه اخیستله، چې هندوستان او خراسان ته یې پام وی.

دغه د بلوچستان سپاره ټولګی د شا هرخ زوی نصرالله میرزا، د تبس حاکم،

رول‌لوبو لی و، چې دنورو ټولو عسکرو سره یې جوت‌توپیر درلود. په مشهد باندې د یرغل په وخت کې احمدشاه درانی د ترکمنو عسکری ټولکیو څخه هم کاروا خیست. په هندباندې دیر غلونو په‌وخت کې احمدشاه سره دازبکانو او خراسانیا نوغښتلی ټولګی هم مګری و(۵۱). د تیمورشاه په‌څهنو پوځ کښیو کې د پښتنو په پلوی سره د بهاول پور نواب عسکری قوه هم جنګیده. د پښتنو اردوته د سیستان حکمران هم د جنګ په وخت کې څه ناڅه لوی پوځ لیږه. داحمدشاه او د ده جانشینانو په وخت کې د پښتنو ار دو د ر ستیز وال لپاره مونږ لاندې خبرتیا وو ته سخه کوو.

د منظم‌و پوځو نو د ر ستیزوال دایران مغولود پوځونو په شان‌وو. سپرو دځان‌سره توپک‌یاقرابین توري اونیزې ارلې. دګارد زیاتره‌برخې عسکرو دسرنه‌تر پښو پورې زغرې اغو ستلی(۵۲). دسپرو سرغند و ی غلا ساتی، عسکرو نقربی‌خنجرونه‌لرل، چې دهغوی سرونوته دسر و زر و اوبه ور کړشوې وې(۵۳). دد ې پوځ افسرا نو یوې برخې تمانچې ارلې، اوسنی هندی‌مورخان‌وایی، چې داحمدشاه درانی سپاره پوځونه په وسلې سره‌دیر سمبال‌شوی‌وو. داحمدشاه اردو د هندی پوځونو مرهټیانو پوځونو

---

51— "Hakikat", P. 18 . فیض‌محمد، سراج لتواریخ' لومړی‌توک، ۲۶ مخ .

۵۲ — کاشیراج پاندیت‌لیکی، چې په پانی پت کې د پښتنو اردوسپرو عسکرو شمیر دوو" ۲ "زروته رسیده، چې‌ټولو زغرې اغو ستې‌وې. د دې موضوع لپاره دغبا ر ا ثر ( احمد شاه بابای' افغان ۱۳۳ — ۱۳۵ مخونه، ) هم وګوری.

Henry George Kenne, Turks in India London 1879 p. 236—237;

(۵۴) په تناسب سره په خپل وخت کې ډېرې ګرمې وسلې لرلې . ډېرو عسکرو توري،
خنجرونه او ښې لرونکي توپک ګرځول. د درانیانو قبیلې سپاره ایله جاري عسکري
ټولګي په ایراني توروا او ټوپکو سمبال وو، د دې ایله جاري ټولګیو یوې برخې
نیزې، خنجرونه او په جنګي تبر ګیو سره وسله وال شوي وو. د احمدشاه د راني-
دسلطنت په موده کې زیاتره عسکر وډالونه (سپرونه) لرل، ولې د «۱۹۰» ځري په اوسریو
کې د دې وسلې کارونه تقریباً له منځه ولاړه. ټوپک معمولاً لنډه نل قطر یې زیات
او کله کله د برچو سره هم کاریدل. د یو سپاره عسکر وسلوالي تقریباً درو «۳» تومانو
په سوته اړتیا درلوده (۵۵)، غلزایي هم د درانیانو په شان په وسلو سمبال شوي وو.
د ختیځې پښتونخوا پښتنو (یوسفزیو، ختکو، مروتو او نورو) هندي توره او ډالونه، ټوپک
، نیزې، څرمني سینه بندونه، همداډول لیندۍ او غشي درلودل (۵۶). دا برید یو او
ځمونورو قبیلو سربازانو چې کابل ته نږدې یې ژوند کاوه، د تورو په ځای ئې یو ډول
ځانګړې چاکوګان په کارول چې تقریباً «۹۰» سانتي متره یې اوږدوالی درلود (۵۷).
د کوهستان څخه د تاجکانو ایله جاري ټولګې په ټوپکو، لنډو خنجرونو او یو ډول
تفنګچو چې «شیربچه» یې ورته ویل وسلوالیدل . ځکه چې داردو زیاته برخه د سپرو څخه
جوړه شوې وه، نو په دې اساس د آسونو سامان او وسلو بیا جوړونې لپاره ډېره پاملرنه کیده

---

۵۴— دا کتاب هم وګورئ :

Tryambak Shankar, **shej walkar**, **Panipat: 1761, Poona, 1946, p. 89.**

55—M. **Elphinstone, An** account, **p. 530.**

۵۶— محمد حیات خان ، حیات افغاني ، ۵۷۳ مخ .

57—M.Elphinstone, An account, p. 537.

په اسونو کې معمولاً ترکمنی ، اوزبکی جنسونو ته زیات ارزښت ورکول کېده . د ا ځکه چې ددې سیمو اسونو داو ږده مزله په مقابل کې خاص مقاومت ښکاره کاوه. پدې اسونوباندې دلرګی سپک زین اچول کېدل اود زین ناستی ځای ته مالوچ ورکول کېده اوبیا ګرمن ورباندې اچول کېده. اوډېر منظمو لښکر وتو ماندانا نو ز ینونه دګرمنی په ځای په اطلس اوبخمل کې نغوښتل کېده .

دزین لاندې دوړ یو یالمځی بالښت ایښودل کېده . داتلسمې پېړی په (۸۰) اتیاوسو کالونو کې په افغانستان کې دمېرلی شپه آس پنځوسو نه تر شپېته رو پیو پورې بیه درلوده (۵۸) .

غلامان ـــ دشاهی ګاردعسکر په په عمومي ډول په هغواسو لوپا ندې مېرېد ل چې هغه ددوی د باد ارسال ګڼل کېده . دغلامانو ته پرته نورعسکر اړدو ، چې پخپله آسو نه پیدا کړي . که فرضاً د دولت له خوا دوی ته آسونه ورکول کېدل، نو په هغه وخت کې دعسکرو له تنخو اڅخه په کراره سره دآس بیه ګرځېده پههمدې ډول سره د ګار توسو اووسلې بیه هم دعسکرله تنخوا څخه په تدریجی ډول اخستل کېده (۵۹ ).دپوځ کښې او کله کله دجګړې پېل نه دمخه پوځی کتنې پېل کېدلې. دغه پوځي کتنې معمولاً دپادشاهـ مخ کې ترسره کېدې .

د پوځ کښې په و خت کې دارد و تر تولو په برخه چې معمو لاً دمېرو ار دو ه، دمخه تله دمېر و ار دو پدې برخه کې دتو لو پوځو نو تقر بیاً علومه برخه شا مېد له

۶۰). دغې پیش قدم سپاره‌یوځ ددښمن په برخه کې معلومات راټولول، خو را کی
مواداوڅارو یو لپاره یې‌واچه‌او نورمواد لاس ته راوستل،اودار تپاپه وخت کې یې
ددښمن سره په داسې ځای کې جګړه پېل کوله ، چې دنوروپوځونولپاره تقریباً په
زړه پورې وه. دمارش‌په‌وخت کې هرتولګی ځان ته‌روان و.عسکروته‌په‌هیڅ توګه
دا اجازه‌نه‌ورکول کیده‌چې دمارش په وخت کې خپل‌تا کلی ځای‌پرېږدي .
او‌په‌پل تولګی ورننو ځي .که فرضاً کوم عسکردارد و قوانین ماتول‌نوهغه
ته سخته جسمی سزا ور کول کیده (۶۱) . دورځې له‌خوا کله چې‌په ساده ډول
داردو مارش پېل کیده ، نودمخه غلامان دځلورکسه‌ز کتار په‌ډول آسونو باندی
سپاره‌دپادشاه کمپ نه ګرد چا پیره درېدل . په هغه دقیقه کې چې پادشاه د آس
زین باندې کېناسته په‌زر ګونو دشاهی ګارد عسکر وپه‌لوړ یوځایی‌اوازسره‌خپل
پادر( پادشاه) ته رسم تعظیم ګاوه .دوی‌درسم تعظیم په‌وخت کې په خپلو چیغو
کې داسې ویل : دخدای رحمت دې په پادشاه وي، «شکرخد ایه » . دغې چیغو
اورسم تعظیم ټوله ارد وپدې خبروله چې پادشاه زین ته ووخوت،وخوځید(۶۲) .
کله‌چې پادشاه داردو سره خوځیده شاوخوا‌یې‌شاهی غلامان چا پیره کړې و و . په
ورځ کې په‌منځنی ډول اردو تقریباً پنځو پشت «۲۰» کملو متره لارو هله د ا هم
باید وویل شی چې که اردوپوه ورځ مارش ګاوه بله ورځ یې استراحت‌و . ولی د

---

۶۰— دمثال په ډول‌په‌۱۷۷۹-۱۷۸۰ کالونو کې‌دتیمور شاه داردو پیش‌قدم
پوځ چې پنجا ب ته و رننو ت ،شمیر یې اتلسو ۱۸ زرو کسانوته رسید ه. دغه
پیش قدم پوځ له‌درانی‌انو، یوسفزیو اوقزل باشانو څخه جو ړشوی و. ددی پوځ

ضرورت په وخت کې افغاني اردو ګولای شول چې اوږد مارش وکړي او ډېره لوی په فاصله په رټ لنډ وخت کې ووهي. د ۱۷۶۲ کال د فروري په میاشت کې چې پښتون پادشاه احمدشاه غوښتل په سکانو باندې یرغل وکړي، نو د خپلو پوځونو سره یې د لاهور نه د سرهند شمالي برخو پورې چې سل (۱۰۰) میله لار کېږي، په دوو ورځو کې لنډه کړه (۶۳). په ۱۷۶۴ — کال کې د احمدشاه پوځونو په دوو شپو او یوه ورځ کې تقریباً دوه سوه میله یعنې ۳۲۰ کیلومتره لاره ووهله (۶۴).

په داسې حالاتو کې د اردو د مخ کې د مهرو خبرو د ډلکو نسبتاً لوی ټولګی استول کېده چې د دښمن په باره کې معلومات راټول کړي د هغو مهرو خبرو ړونکو ټولګیو که په لار کې د چاپېره مخامخ کېدل، لاس په لاس یې هغوی محاصره کول، ترڅو دښمن ونه ګولای شي چې د مخامخ لوري په باره کې خبرتیا پیدا کړي. پښتنو پوځونو مقابل لوری ته د اموقع نه ورکوله، چې د پښتنو پوځونو د ورتګ په باره کې ځان خبر کړي، تیاری ونیسي او پادوی لېږل شوي جاسوسان ژوندي بېرته ورشي (۶۵). د مارش په وخت کې عسکر ځان سره څوېری اخیستې چې په هغه کې ډوډۍ، ګرت او د ګرمنې لوی ژی داوږو لپاره شامل وو. دغه ټول ضروري هیزونه په آس باندې اچول (۶۶). کله چې په اردو کې د خوراکي موادهای ته رسېدل نو د ځمرو ټولګی چې ۰ ، ۱ یا ۲ زروته ټې شمېر رسېده جمع کېدل، د کلیو او باندو په

---

63—G. forster, A journey from Bengal to England..., Vol 1. P. 277—278; hakikat" p. 15, 20, 21).

64—"Tarikhi Najib-ud-da ulah" ("Islamic culture", vol. VII 1933 No. 4), p. 615.

خلکو به يې برغلونه کول ، د هغو ښاروي به يې له ځان سره بيول ، خوراکي مواد چې به په ښه ډول لاس ته راوړل کېده ، د يوه ځانګړي آمر له خوا به لښکريانو ته وېشل کېدل . اردو د مارش په وخت کې معمولاً د سوداګرانو له خوا بدرګه کېده .
سوداګرانو ډوډۍ، غوښه ، ميوې، سابه ، توکران او همدا ډول د هرفن کسب ګران د اردو سره تلل . د دې ټولو سوداګرانو او کسب ګرانو نه پرته اردو سره ځتکرسوداګران او ضرابخانه هم ملګري کېدل(٦٧). کله چې اردو آرام کاوه ، هر ټولګي د خپل لارښوونکي— چارپېر ځايونه نيول . ترڅو هغه د هر ډول خطر څخه وساتلای شي(٦٨).
که اردو فرضاً د ډېرې مودې لپاره په کوم ځای کې تمېدله ، نو په دې مهال کې کمپ ځان لپاره خندق جوړاوه او د خندق د ديوالونو ته يې لرګي ورکول چې د غورځېدو مخه يې ونيسي ، احمدشاه دراني به په حالت کې د عسکري کمپونو لپاره ځيني کونه تقريباً د دولسو «١٢» کيلومترو په اندازه ګڼدلی وه . او د خندق کولو د ديوالونو ته يې د لرګو ستنې ورکړې وې(٦٩) د لښکر کښې په وخت کې ځانګړي کوريرانو (استاځو) به وسيله سره اړيکې ټينګېدلې او يا به د غرونو په څوکو باندې اورونه بلول چې د څو اورونو د سګنال معنی ورکوله . د سيندونو څخه د پورې وتو په وخت کې به د کوچنيو بېړيو څخه پلونه جوړول . د احمدشاه دراني د لومړيو لښکر کښو په وخت کې د پښتنو پوځونو د ماتې ټولګي چندان نه و مسمبال شوي ، نو له همدې درکه د پښتنو پوځونو

67—Ch. J. Rodgers, the Coins of Ahmad Shah Abdali

ډېر زیات تاوانونه ورسیدل (۷۰) . ولې احمدشاه دې تاوانونو ته زر ځیر شو او په راتلونکو پوځ کښې یې ګارد و دساتنې لپاره یې خبرونکي ټولنه قوي کړه، چې دغې کار زیاتې اغېزې منځ ته راوړلې (۷۱) . دلښکر کښې یو په وخت کې دپادشاه د سفر شپانو ساتل یوه تکړه سړي ته په غاړه وو، چې هغه ته «پېش‌خانه چي» یا «فراش باشي» ویل کېده . دپادشاه دسفر شپان وچه بودي او غلچې درېسوو اوښانو وړل او دهغه اوښان دپوځ کیڼې جناح ته تلل ، دپوځ ښې پلوته دوه سوه نور اوښان په لوېو، جامو او لوړو شیانو بارتلل . دپوځ شاته شاهي خزانه په غوښکمو او کچرو بار روان وو (۷۲).

دجنګ په وخت کې افغاني اردو په څلورو برخو یعنی ښي جناح ، کیڼ جناح، مرکز او احتیاطي برخې ویشل کېده . دشاهي قوماندانی مرکز دجنګ په وخت کې داردو په مرکز کې ټاکل کېده . او دهغه نه دمخه توپخانې او « زمبورک » وسلوته ځای ټاکل کېده ، دشاهي ګارد عسکر غلامان داحتیاط لپاره ساتل کېده او معمولاً هغه وخت دجنګ ډګر ته ور داخلیدل چې په نښته کې وضع بحرانی حال ته رسېده .

ددرانیانو بادشاهانو دپوځونو شمیر ، دېروالی او لږوالی یوازې دمنظمو پوځونو په برخه کې معلومېدای شو . د منظمو پوځونو په برخه کې دشمیر لږوالی او

---

۷۰ - په ۱۷۵۰ کال کې احمدشاه په مشهد حمله وکړه . ددې ښار شاوخوا کې دپښتنو دښمنانو یعنی نادر میرزا او نصرالله خان هره شپه په اردو برغل کاوه او داحمدشاه درانې پوځ کمپونو ته یې زیات تاوانونه اړول ، داځکه چې پښتنو پوځونو نه پوره داران لرل او نه یې دساتنې ټولګی درلودل ، ددې موضوع لپاره دغه لاندې

د پروالي د حالاتو له هرلګوالي سره ربط درلود. دافغانستان معاصر تاريخ ليکونکی غبار وايي : چې داحمد شاه د پوځونو شمير يو سلو شل زرو «۱۲۰» عسکروته رسيده، چې ددې جملې څخه يعنې دريمه برخه منظم پوځونه وو . ددې پورتنۍ خبرې مثل په لاس په لاس د پر سم نه دی . داځکه چې په موجوده حالت کې دهغې زمانې دارشيف مواد زموږ په لاس کې نشته چې د هغه له مخې داحمد شاه د پوځونو اصلي شمير وجوو لای شو .

دا بايد وويل شي چې داحمد شاه دراني دعسکري قوا وو شمير دجګړو په مختلفو مرحلو اوو ختونو کې بدلون له و .

دمثال په توګه په ۱۷۴۸ کال کې چې احمد شاه په لاهور باندې حمله وکړه داردو شمير يې د پرشو زرو عسکروته رسيده (۷۳) ولې کله چې احمدشاه خراسان ته لښکر کشي کولې ، هلته يې دعسکرو شمير د پنځو سوله تر اويا وزرو پورې و.

---

۷۳- فيض محمد، سراج التواريخ، لومړی توک، ۱۱ مخ، محمدامين ددې اردو شمير هم علاويبثت زره بولي ، معاصر هندي تاريخ ليکونکی دغه شمير مبالغه بولي او وايي چې احمدشاه په دې نښته کې ۱۸ زره عسکر جګړې ته ورداخل کړل، او توپخانه خوبې بالکل نه لرله . دغو لاندې کتابونو ته مراجعه وکړی :

(۷۴). په ۱۷۵۷ کال کې چې احمد شاه په هندوستان ورننوووت ، ددرانیانو د کاردله تولګیونه علاوه ، چې شمېرو یې دولسو زرو کسانو ته رسیده ، دده سره یو لښکر کې د بلخ دوولس زره ازبکان ، دوه زره د بلوڅو سپاره ، اته زره قزلباشان ، لس زره د محمدخان موسمد عسکری یوځ اوپنځه زره د بج چنګ خان پنګښي یو لمسی تولګی ملګري وو. په دې ترتیب سره په دغه یوځ کې د احمد شاه درانی تر لوا لاندې پنځوسو زرو عسکر و ګډون درلود(۷۵).

د هانی پټ په نښته کې چې په ۱۷۶۱ کال کې منځ ته راغله ، په دې نښته کې د پښتنو اردو شمېر تقریباً ۴۲ زرو ووته رسیده . د سېړي اردو په لاس کې (د سپړي اردو غلاوړمه برخه د ګاردغلامانوغخه تشکیل شوې وه )، غلو پښت سارانی تو یونه دوه زره د زمبوریکه وسله چې دوپښتولکو شمېرو یې غلو زره و، اوددې نه پرته منظمو پلیو پوځو تو لکی هم ورسره ملګري وو. دا حمد شاه درانی اردو متحدینو قواوو سره یوځای . ۸۰ زرو کسانو ته رسیده، اته دیرش زره پلی عسکر

---

۷۴- په ۱۷۵۰ کال کې داحمد شاه درانی اردو ۵۰-۶۰ زره عسکر لرل، د ۱۷۵۴ کال په اواخرو کې احمدشاه په خراسا ن کې پنځوس زره عسکر ارل . (د غداثرو ګوری ه: د روسي خارجي سیاست ارشیف د پارس سره د روسي روابط. ۱۷۵۰، د، ۸، ۱۱ پانه، ۱۷۵۱ کال، د، ۵، ۰۶، ۱ پانه، ۱۷۵۵ کال ، د، ۷۸، ۰ پانه). په ۱۷۵۵ کال کې چې احمدشاه سبزوارو ته یو دې وخت کی دده اردو ۶۰ زره کسانو ته رسیده ، چې زیاتره برخه یې پښتانه وه .دغه اثرته مراجعه و کړی ه:

دوه زره د دزمبورکو«زنبورکو» وسله او (۷۰—۸۰) توپونه هم پکې شامل وو(۷۶) د غیر منظمو پوځونو شمیر څلور وار د منظمو پوځونو په تناسب زیات وو، ولې غیر منظمو پوځونو سره چندان وسله نه وه، او په جګړه کې یې دومره زیات رول نه شوای لوبولای.

کاشیراج چې د هغه له سوبې وروسته معلومات راخیستي دي داسې لیکي: «زه که غلط نه شم، د مسلمانانو پوځ هم دومره و، د اځکه مخکې له هغه چې زه د هغه پوځ اندازه وټاکم، ما نه یوازې د دفتر په امداد و تکیه نه کوله، بلکه د هغو کسانو څخه مې هم معلومات راټول کړل، چې هره ورځ به یې د پوځ خوراکه ویشله(۷۷).

په دې ترتیب ویلای شو چې په نښته کې د احمدشاه دراني تر قوماندانۍ لاندې تقریباً اتیا زره منظم عسکر وو، چې ممکن د ۲۰۰—۳۰۰ زرو پورې غیر منظم عسکر هم ورسره وي. که دا فرض کړو چې و روستي شاخوا له د پښتنو پوځونو شمیر په مبالغې سره یاد وي، ولې دا دې مبالغې سره ویلای شو چې پوځونه د شمیر له مخې ترتولو زیات وي، کوم چې د احمدشاه دراني تر بیرغ لاندې راغونډ شوي وي. د ا خبره هم باید هیره نشي، چې په دې لویه اردو کې د پښتنو منظمو عسکري ټولګیو شمیر تقریباً تول اتیا فیصد و ته رسیده.

د ایست انډیا کمپنۍ جنرال ګورنرو انسیټارت په وینا د پښتنو هغه اردو چې په ۱۷٦۷ کال یې په هندوستان حمله وکړه، سل زره سپاره عسکر لرل. د غه شمیر

---

76—Casi Raja Pundit, An account of battle of Paniput..., P 105.

محمد امین په خپل کتاب «مجمل التواریخ» ۱۲۷ مخ کې مشابه راپور داسې وړاندې کوي

چې برتانوي جنرال ګورنرونو یادوي ، زموږ لپاره مبالغه امیزه ښکاري ، اوپه مقابل کې . داخبره زموږ په نظر حقیقت ته نږدې ښکاري ګومه، چې د۱۷۶۷ کال په اردو کې د پښتنو سپرو عسکرو برخه پنځوس زره تنه بولی (۷۸) .

د تیمور شاه داردو په باره کې زموږ سره په نسبی ډول معلومات کم د ي ، فاسترلیکی : چې د تیمورشاه اردوخپل پلارپه تناسب ډیرخې لږه وه، اوتعدادیې دیرشو زرو کسانو ته رسیده چې زیاتره برخه یې سپرو تشکیلوله .ددې اردو څخه پرته ځینې شا هی ګارد هر وخت د تیا رې په حا ل کې و، چې د جنګ په وخت کې د هغه شاوخوا د خا نا نو عسکري تو لګی اود قبایلو ایله جاري پنځیدل(۷۹)

میترو پا لیت کریسا نف لیکی: چې د تیمورشاه د عسکروشمیر شلوزرو تنوته رسیده هروخت دجنګ لپاره تیارسی وو (۸۰) .ددې اردو اساسی هسته هغو دولسو زرو سپرو قزلبا شو عسکروتشکیلوله چې قوسا ندان یې سردارمحمدخان بیات و. دا هم ویلای شوچې تیمورشاه ترڅپل پیرغ لاندې په یوه وخت کې دشپیتو څخه تراویازرو پورې عسکر جمع کولای شول، نه له دې اندازې نه زیات. کله چې تیمورشاه په پهاول پورپاندی حمله کوله د اردوشمیرېې همدغه اندازه و(۸۱).عبدالکریم بخاری لیکی : تیمورشاه دشامراد په مقابل

---

78—J Heras Durrani in fluence in northern India (Islamic culture, vol. XI, 1937, No. 4), P. 507, A. Dow, the history of Hindustan, Vol, II., P. 382—383.

79—G. forster, A Journey from Bengal to England..., II, P. 85.

۸۰— کریسانف میتروپالیت نوا پتراسکی دمنځنی آسیا هیوادونو په باره کې ۱۱ مخ

81— Calendar of persian correspondence", Vol. VIII, p.637—638, No 1548; Mohanlal, A Brief account of the origin ofthe Daud

کې یوسلو پنځوس زره عسکر د جګړې ډګر ته وړاندې کړل (۸۲) چې په نتیجه کې شاه مراد مړوه هم ترلاسه کړه، وایې موږ په یقین سره ویلای شو چې د نوموړي مورخ دغه شمیر مبالغه آمیزه دی، داځکه چې د هغه د تاییدلپاره هیڅ ډول دلیل نه لري. برتانوي جاسوس چې د ۱۷۸۸ کال په سپږ کې کابل کې دی لیکي: چې تیمورشاه د شاه مراد مقابلې ته د عبدالطیف خان تر قوماندانۍ لاندې څلوېښت زره سپاره عسکر ولېږل. د دغه معلومات زموږ په نظر حقیقت ته نږدې ښکاري (۸۳). په دې کې هیڅ شک نشته چې د احمد شاه دراني وسله والې قواوې د خپلو جانشینانو په تناسب ډېرې زیاتې وې. د مثال په توګه رفا پیل دا ای یکف خیال کوي چې د ۱۸–۱۹ پېړ یو په شاوخوا کې د پښتنو اردو پنځوس زرو نفرو ته رسېده (۸۴) د غلام سرور د معلوماتو له مخې د شاه زمان اردو د هغه د سلطنت په اوایلو کې ۶۸۸۳۰ زره عسکر لرل چې له دغې جملې څخه پنځه دېرش زره اوسوه پنځوس کسه په ولایتونو کې پراته وو او پاتې برخه یې د هیواد په مرکز کې وه. مرکزي قوه په او وبرخو یعنې ۷ رسالو سره ویشل شوې وه. د هرې سیمې قوماندانی د پادشاه خپلوانو ته سپارل شوې وه. د شاه زمان د غلامانو یوځ له ۹۷۸۰ کسانو څخه جوړ شوی و. فیض محمد لیکي چې د شاه زمان د غلامانو اردو د ۱۲ زرو سپرو غلامانو څخه تشکیل شوې وه، چې د شاهي دربار او حرم ساتنه هم د دوی په غاړه وه.

د دې غلامانو نه پرته د شاه زمان په اردو کې د پلوځانو سپاره عسکر او د پښتنو قبایلو: تړینو، ختکو، اندړواو نورو عسکري ټولګی هم موجود وو، چې په دایمي ډول د پادشاه سره په پایتخت کې اوسېدل. د دې ټولګیو د شمیر اندازه نه ده ښودل شوې. د شاه زمان په اردو کې د کندهار ولایت درانیانو او نورو قبایلو څخه دېرش زره سپاره موجود وو چې

---

۸۲– عبدالکریم بخاري، افغان و کابل [illegible]

دهغوی قوماندانی خپلو خانانو ته سپارل شوي وه (۸۵) .

په ۱۷۹۷ کال کې چې شاه زمان په پنجاب باندې حمله وکړه ، دهغه سره یې اتیا زره سپاره او پلی عسکر لرل ، چې «۷۰۰» «زمبورکې» او درې شپېته توپونه هم ورسره وو (۸۶). اما دده خپل منظم عسکري تولګی ددې اردو پوه برخه وه اوبس.

ددرانیانو په امپراتورۍ کې داردو اعلی قوماندان هروخت پادشاه وو. دپادشاه نه لاندې په اردو کې سپاه سالارو چې داعلی قوماندان (پادشاه) او سپاه سالارترمنځ ارتباط د «دفترنظام» په وسیله ټینګېده . داحمد شاه درانی دسلطنت په دوران کې دشاهي اردو سپاه سالار جهان خان پوپلزی و (۸۷).

دامپراتورۍ اردو کې تر ټولو مهمه اداره نظامی دفتر و . دنظامی دفتر وظیفه داوه ، چې دمنظم پوځ شمیر هروخت معلوم کړي ، داردو خزانې او ذخاېرو راپور واخلي او همدا ډول نظامیانو ته ددولتي ذخېرونه خوراکي موادا ونورټول ضروری شیان ورکړي. ددې دفتر مسئول منصب دار امرته داحمد شاه درانی جانشینا نو په

---

۸۵- فیض محمد، سراج التواریخ، لومړی ټوک، ۵۶ مخ. ددې خبرې مننه چې داحمدشاه درانې جانشینانو وولس زره غلامان لرل، دنوروا سنادوله خوا هم قبوله شوې ده دمثال په توګه دغو آثارو ته مراجعه وکړی‌ه :

M. Elphinstone, An account..., P. 530—531,

شاهزاده محمد مصطفی ، دافغانستان تاریخ، چې دپښتنو پا دشا هانو اولادی په خولو بیان شوی دی . ادبی ورځپانه .

86—H.R. Gupta, History ofthe sikhs, vol. III, Lohor, 1944, P. 62;

ج ، کنینګهم لیکي چې په دې پوځ کشي کې شاه زمان یوازې ۳۰ زره عسکر خپلې

وخت کې «لښکرنویس» ویل کېده (۸۸) .دټولو عسکري ټولګیو دافرادو نومونو لستونه په یومخصوص دفتر کې ساتل کېدل،چې«سنچهره» یې باله.دلښکردخوراکي مواد واوحیواناتودوښو ښیرلاپاره مخصوصه اداره وه،چې دهغې اداري امر ته «سورسنچي باشي» ویل کېده . سور سنچي باشي په ټولو ولایتونو کې ما لیات په جنسي ډول ټولول ، اودهغو ولایتو دپوځونو احتیاجات ورباندې پوره کېدل .
داحمد شاه دراني دسلطنت په لومړیو وختونو کې دپوځ خوراکي موادو لپاره کومه خاصه اداره نه وه .

دا کار ددې سبب کېده،چې دلښکر کشیوپه وخت کې عسکروته دېغښي اولوږې څخه زیات تاوانونه رسېدل . دمثال په توګه کله چې احمدشاه دراني نیشاپور محاصره وته کړای شو ، او هرات ته یې عقب نشیني وکړه .
په دې وخت کې دپښتنو پوځونو دېغښي دلاسه ډېرزیات تاوانونه ولیدل ، یوازې په کافر کلا (اسلام کلا) کې په یوه شپه کې دېغښي له لاسه ۸زره کسان مړه شول (۸۹) .دوهم مثال داچې په ۱۷۰۰ کال کې په استرباد باندې دپښتنو پوځونو دلوږې له کبله دپوځ کشې نه صرف نظر وکړ، کندهار ته یې بېرته راتګ ته مجبور شول (۹۰) .
احمد شاه دراني دخپل اردو دناکامۍ علتونه په جدي توګه مطالعه، او په راتلونکو لښکر کښیو کې یې دعسکرو خوراکي شیانو برابر ولو ته زیاته توجه

---

۸۸- غبار،احمد شاه بابای افغان ،۱۳۹ مخ ،عزیزالدین پوپلزایي ،تیمورشاه

راوګرځوله. تاریخ لیکونکی وایي: چې دهاني پټ په نښته کې احمد شاه دراني خپل بوځ ته زیات پام و، په کمپو تواوبازارو کې یې ددوی زیاتوالی اوارزانوالی ترخپل کنترول لاندې ساته (۹۱).

جبه خانه (کور خانه) د کور چې باشي تر امر لاندې وه. کورچي باشي داردو لپاره سره وسله جنګي، مهمات، دهغوی ترسیم اوساتنه په غاړه لرل. په کندهار کې «باروت خانه» اوډباروتو جوړولو ورکشاپونه موجوددو، چې تر«نن ورځې پورې شته دي».

دنظامي محکمې امرته «قاضي عسکر» ویل کېده، په هغو وختونو کې عسکري دسپلین په کلکه مراعات کېدل. دګناه په وخت کې دګناګاروعسکروپرېې غوڅېدې، دغه دول ګناه کاران دجزانه وروسته دلورو دعبرت لپاره د عسکرو کمپونوته بیول کېدل، جزاګانې نه یوازې ساده عسکروته ورکول کېدې، بلکه حتی لوړ عسکري مامورین هم تردې جزا لاندې راتلل.

په پوځونو کې محتسبان هم وو، چې په عسکرو کې یې دشریعت قوانین پلمای کول. هرڅنګه چې ددولتي ادارو په منځ کې دوظیفو هرګند ویش وجود نه درلود، نوزیاتره وختونه په اردو کې ستر پستونه ملکي کسانو اوپادریانوته ورکول کېدل. دمثال په دول شاپسندخان چې داحمدشاه دراني دطوېلې «داروغه» په حیث یې کار کاوه، دهاني پټ په نښته کې نوموړي «داروغه» ته ددوولسوزرو سپرو پوځ قوماندانې ورکړې وه، چې د پښتنو قزلباشو ازبکو اوایماقو څخه تشکیل شوې وو (۹۲).

---

91—Mohammad Jafar Shamlu, Tarrikh—i Manazilu—l—Futuh,

پله دا چې د اردو زیاته برخه د غیر منظمو ټولګیو څخه جوړیده، او په نظامي چارو کې مهم رول د مالیې وزارت ته سپارل شوی و. په دې صورت کې د مالیې دفتر مجبور و چې د عسکرو ټولو ټولګیو حساب د ځان سره وساتي. په اردو کې د وسلې او اسونو کتنه وخت په وخت کیده. د همدغې کتنې په نتیجو پورې د غیرمنظمو عسکري ټولګیو قوماندانانو د تنخوا لوړوالي او ټیټوالي تړلی و. د غه غیرمنظم عسکري ټولګي د مالیې دفتر په حساب کې راتلل. سورستچي باید هم تر یوې اندازې پورې د مالیې دفتر امر لاندې و (۹۳).

د پوځ کشیو په وخت کې د عسکري ټولګیو قوماندانانو کله مستقیماً د پادشاه او امر اجرا کول، او کله د هغو ټولګیو په سر باندې پوځي امر ټاکل کیده، او د هغه امر تر قوماندې لاندې یې وظیفې ترسره کولې. د سولې په وخت کې چې کوم عسکر د هیواد مرکز کې پاتې کیدل، د هغوی اداره په خپله پادشاه او سپه سالار ته سپارل کیده. کوم پوځي قواوې چې په ولایتونو کې اچول شوې وې، د هغوی اداره د پادشاه په امر سره قوماندانانو ته ورکول کیده. د غو پوځي قوماندانانو ته «امیرلشکر» ویل کیده. پورتني د لښکر امیران نه یوازې د مرکز تابع وو، بلکه د مربوطې صوبې حاکم او خپلو نوابانو فرمانونه یې هم منل.

هغه پوځونه چې په لویو کلاګانو کې اچول شوي وو د هغوی قوماندانان «کلاداره» نومیدل. هغه معلومات چې زمونږ لاس ته راغلي دي وایي چې په هغه وخت کې د پښتنو زیاتره جونې مربع شکله او یا یې د مستطیل بڼه درلوده. پلن دیوالونه یې درل، چې د لوېځو پښتو لپاره سوري پکې جوړ شوي وو، د دې نه پرته جونې د دیوالونو پاسه و

دهغو په د پوالونو باندې دوه کسه څنګ په څنګ تېرېدلای شول . د د پوالونو په تاکلي فاصله باندې بندبرجونه جوړېدل . د کنجونو برجونه د پېندوالي له کبله له منځ برجونو څخه ډېرزيات پنډ اوهلته د توپونولپاره ځايونه پکې جوړشوي وو .

چونۍ زياتره وختونه په خندق باندې بندېده ، او د ضرورت په وخت کې د هغو خندقونوته اوبه ورخوشې کېدې . د چونيو دوروازو په سر د سرچلونو ورونه اوکړکۍ په غټو سختو ميخونو سره ټينګېدلې د چونيو څخنۍ ورونه په دايمي صورت تړلي وو ، او هغه ورونه ځانګړو پيره دارانوله خوا ترسخت کنترول لاندې وو . د غلام سرور په وينا د درانيانو په امپراتورۍ کې د اتلسمې پېړۍ په و روستيو کلا لو نو کې پو سلوپنځه نوي چو نۍ موجودې وې ، چې په دې جمله کې هغه زيات شمېر بندرونه ورې کلاوې اوکوټونه را تلل . د پښتنو په سيمو کې د هغو چونيو نه پرته چې مغلواوصفويانو جوړې کړې وې ، پښتون پادشاه احمدشاه راني هم ډېرې چونۍ اباد ې کړې . د مثال په توګه پښتون پادشاه دراني په تا شقرغان ( خلم ) او مشهد کې (۳۹) چونۍ جوړې کړې . په پوځونو کې د نوکرۍ لپاره د منظمې اردو نه عسکري ټولګۍ رابيلېدل او د هغوی سره په دې کار کې د غيرمنظمې ارد و له ځينو ټولګيو مرسته کوله .

په لويو چونيو کې د پلېواوسپرو پوځو نو په څنګ کې له تو پخانې څخه هم يو ټولګۍ اچول کېده .

---

۳۹ـ د روسيې خارجي سياست ارشيف ، ف ( د پاريس سره د روسيې روابط ) د ۱۷۵۵ کال ، ۵ ، ۷۸ پاڼې ، بارتولد . د ايران تا ريخي اوجغرافيا يي مطا لعه ، پتر زبورګه

داچې د پښتنو امپراتورۍ د منظمې اردو منصبدارانو او عسکر وته په کال کې څومره تنخواه ورکول کېده په دې باره کې زموږ معلومات ډېر کم دي .
د منظمې اردو قوماندانانو ته چې د «دهباشي» او د هغه نه ډېر لوړې رتبې درلودې د تنخواه یوه برخه نغدې روپۍ ورکول کېدې او د باقي نیمایي برخې په مقابل کې دوی ته جاګیرورکول کېده (۹۵) .

د تنخواه نغدي برخه په کال کې یو یا دوه واره ورکول کېده. د تنخواه او جاګیر ارتوالی د منصبدار رتبې سره تړلی وو او په کال کې د سلونه تر یوزر تومان پورې یې نوسان کاوه (۹۶). د شاه زمان له فرمان څخه چې په ۱۲۱۲ هجري «۱۷۹۷» کال کې یې د قولي محمدامیرخان په نوم ورکړی و ، داسې پوهېدل کېږي چې د دې رتبې قوماندانان یا په بل عبارت سره د شاهي کارد «دستې» قوماندانان دا تلسمي پېړۍ په اخر کې په یوه کال کې دوه سوه تومانه تنخواه درلوده (۹۷) چې د هغه اندازه معاش د ګارد د یوه ساده عسکر د تنخوا په نسبت تقریباً شل کرتې زیات وو.
داسې ښکاري چې د احمدشاه دراني د سلطنت په موده کې د یوځ قوماندانانو تنخواه لږه وه . دا ځکه چې د لاس ته راغلو معلوماتو له مخې د ارد و قوماندانانو تنخواه

---

۹۵ دغه ترتیب په همدغه دوره کې په بخارا کې هم و .د دې موضوع لپاره دف .س یفریموف اثر وګورۍ ، بخارا خیوا ، پارس او هندوستان ته د درباري مشاور یفریموف سیاحت ... پترزبورګ ۱۷۹۴ ، ۳۹-۴۱ مخونه ، ن.و.خا نیکوف د بخارا د سرداري شرح ، پترزبورګ ۱۸۴۳ ، ۱۱۳ مخ ، د لوی بخارا و روسیې شرح «اسیایي مجله » پترزبورګ ، ۱۸۲۵ مخ .

دتیمورشاه دسلطنت په دوره کې لوړه شوه (۹۸) . (داهم باید په نظر کې ونیول شي چي داتلسمې پېړۍ په ورستیو کلونو کې دپه‌سوارزښت راټیټ‌ېږي).

جاګیر او دهغه شرایط اولوی وا لی چي دراني با دشا هانو دخپلی اردو قومانداناتوته ورکول (جاګیر ملکي‌مامورینو، درباریانو او کله کله داردوساده عسکروته هم‌ورکول کیده) . ټول‌په یوډول‌نه وو(۹۹).جاګیرد یوې‌ورې‌توټې‌محمکې نه نیولی تریوه (محل) پورې‌رسیده چي په هغه (محل کې‌لس‌گونه‌زره‌اوسیدونکي اوسیدل .لوړې تنخواوې او لوی جاګیر ونه دهندوستان په مفتوحه ولایتونو کې جاګیردارانوته بخشش کیدل . دمثال په‌توګه دحسن‌ابدال ټوله سیمه دجاګیر په توګه دمظفر اباد حاکم مظفرخان یوسفزی ته ورکړ شوه (۱۰۰). دکشمیرپه وادی کی پښتنو سردارانو ته لوی جاګیر ورکول کیده. دکندهار په ولایت کی دراني سردارانو ته ډیر زیات لوی جاګیرونه ورکړ شوی‌وو(۱۰۱) .

احمد شا ه درا ني خپل وزیر شاه ولی خان ته دګل بهار ټولې ابادي سیمې په جاګیر کې ورکړې او داسې نور .

---

98—J.P. Ferrier, History ofthe Afghans P. 99.

۹۹- محینودرباری شاعرانو ته هم جاګیرونه ورکول کیدل .په هغه قصیده کی چي نظام‌الدین سیالکوټی قریش داحمد شاه دراني په ژوند او جنګونو باندی غږیږی ، خپلو شعرونو کی نوموړی شاعر دخپلی غریبی تنګسی اوکوچنی جاګیرنه رټی ګیلی کوی .

(Charles Reiu, Catalogue,Vol. III, London, 1883, P.717—718. add 26—285).

د پښتنو سردارانو نه علاوه ډېر زيات شمېر اشرافو ته چې د پښتنو پادشاهانو سره يې نوکري کولې، جاګيرونه بخشش شوي وو(۱۰۲).

د دغو معلوماتو او اسنادو نه معلومېږي چې زمونږ په لاس کې دي د دراني پادشاهانو په عصر کې د جاګير دغه لاندې ډولونه په ګوته کولای شو(۱۰۳):

کومې ځمکې چې په ميراثي ډول په معاش (جاګير) کې کوم سړي ته د پادشاه له خوا بخشش کېدې، جاګيردار حق درلود، چې د هغه ځمکې ټول ماليات په ځان خرڅ کړي، او يا د راغونډو شويو مالياتو يوه برخه.

(ميراثي او غير ميراثي حقوق): چې د ځمکې او ويالو څخه د مالياتو او باج په صورت راټولېدل، وروسته د دولتي خزانې ته لېږل کېدل. د مثال په توګه د دراني ځينو پادشاهانو خپلو ځينو منصبدارانو ته هغه نوې اباد شوې ځمکې او ويالې په جاګير کې ورکولې، چې د کندهار په ولايت کې واقع وو(۱۰۴). په دې ترتيب سره د دغې کټګورۍ جاګيردار ته دولت يوه سيمه په جاګير کې ورکوله، چې جاګيردار کولای شول د دغو ځمکو ټول ماليات په خپله مصرف کړي، او يا د ټولو شويو عايداتو يوه ټاکلې برخه ځان ته راوګرځوي.

هغه جاګير چې معمولاً د يو ټاکلي وخت لپاره د سيمې او ولايت يوې برخې ماليات جاګيردار ته ورکول کېده. حاکم جاګيردار کولای شول چې دغه ماليات تش د (ديوان اعلی) په مخصوصو براتونو سره ټول کړي. په ۱۷۹۱ کال کې

---

۱۰۲ - احمد شاه دراني د معين الملک ګونډي د موګالاني بيګم ته هم جاګير وباښه.

تیمورشاه درانی مغلي شاهزاده میرزا حسن بخش ته دملتان اوغازیخان دیرې مالیاتو څخه په کال کې دوه سوه زره روپۍ دجاګیر په توګه تنخواه وټاکله (۱۰۵). شازمان خپل خسر عبدالرحیم خان هوتك ته داسماعیل خان دیرې مالیاتو څخه په کال کې دوه سوه زره روپۍ دجاګیر معاش په توګه مقرری کړې (۱۰۶) بل پښتون سردارته داټك مالیاتو څخه یوه برخه په جاګیر کې ورکړ شوه (۱۰۷) همدا ډول د محمد زیو قبیلې سردا رانو ته ددرو لکورو پیو په اندازه په جاګیر کې ورکړای شوې.

هغه جاګیرونه چې دیوه ټاکلی سړی په عوض یوې قبیلې ته ورکول کیدل هغه جاګیر که څه هم وه نو معمولا دقبیلې خیلو نو ترمنځ ویشل کیده. په څینو حالاتو کې دقبیلې په مفهوم مالیات (یادمالیاتو یوه برخه) دجاګیر په نوم دعمومي مبلغ نه بیلیده. کوم مالیات چې د غیر پښتنو سیمو څخه دولت ته راوړل کیده. هغه جاګیر چې پادشاه دیوی قبیلی په نوم بیلاوه کله کله دقبیلی خیلونونه علاوه په کورونو ویشل کیده .دا ډول ویش د پښتنو قومي ژوند لهاصولو سره سمون کاوه. لکه څنګه چې دمخه وویل شول په جاګیر کې نه یوازې څمکې او د مختلفو سیمو څخه ټول شوی مالیات ټول او یاد هغه یوه برخه ورکول کیده ،بلکه او به هم د جاګیر په ډول ببښل کیدای شوې ،چې په هغه جمله کې ویالې او کاریزونه هم شامل وو. دمثال په توګه بلخ اتلس ویالې لرلې چې دهغې سیمې ټولې څمکې یې اوبه کولی. دغه ټولې ویالې د پښتنو پادشاهانو له خوا بیلابیلو کسانوته په جاګیر کې ببښل شوې وې .ددې ویالو څخه یوه ویاله احمد بیګ (دمیر قلیچ علی خان زوی) ته په جاګیر کې ببښل شوې وه ،چې په کال کې یې اویا زره روپۍ عایدات لرل .ددې جاګیر

---

105—Syed Hasan Askari taimur shah and an indian pr ince

سره یوځای احمد بیك د « والی» لقب هم واخیست (۱۰۸)، تراوسه پورې موږ ته یوازې پوحالت معلوم دی، چې د پښتنونه یوه منطقه د ما لیا تواو نور و تو لو حقوقو سره په جا یګیر کی ورکړ شوي وه . دغه منطقه دشال (کوټې) وادی وه ، چې د کاکړ و قبیلې په برخه کی پر ته ده؛ د شال وادي د پره ا باده سیمه ده چې مساحت یې تقر یباً څلو یښت مربع میله کیږی اود هغه سره جنوب پلوته مستونګ اوا پاسین په لوید یځه غاړه باندې دخرن داجیل منطقه هم ورکی راتلل .د غه تولی ځمکی د بلو چستان بیګلر بیګی ناصرخان بلوخ ته په جا یګیر کی ورکړشوې وې(۱۰۹).

ددغو ځمکو مالیات په ټوله معنی سره د پښتنو پادشاهانو مالیاتی دفتر ونوڅخه بیلی او ددغی سیمی عایدات او مالیات دناصر خان بلوخ خزانی ته ورتلل .دد ې جا یګیر په مقابل کی ناصر خان بلوخ مجبور وو ،چې هر کا ل کشمیرته زر کسه پلي عــسکــر و لــیـږی .

تر کومه پورې چې موږ ته څرګنده ده ،دمنظمې اردو معمولی عسکر وتنخواه په عسکری دفترونو (دفتر نظام) کې ثبت وه، اوددوی دنومونو لست هلته موجود و . دهغه لست له مخې هر عادی عسکر نغده تنخواه اخیستله او په هغه باندې یې ژوند کاوه. ترټولو زیاته تنخواه دګارد (غلام شاهی ) عسکروته ورکول کیده .غبار وایی :چې داحمدشاه درانې دسلطنت په وخت کې دغو عسکرو هره میاشت نغده تنخواه ا خیستله (۱۱۰) . داامکان هم شته چې ددوی په منځ کې دګارد دځینو عسکرو ( شا هینچی ) معاش نسبت نورو پلوو عسکروته زیات وی

(۱۱۱). دمعاش له پلوه د زمبورېك وسلوعسکرو (شاهېنچي) دلو روعسکرو په تناسب خاص امتیازات درلودل .

داحمدشاه دراني دجانشینانو په وخت کې دګارد عسکروته دپوځي دفتر له خواد تنخواه په مقابل کې نغدي پیسې حواله کیدې. دشاه زمان غلامانو قزلباشانو هر عسکرته په کال کې ۱۰-۱۱ تومانه معاش ورکول کېده (۱۱۲). دپلیو عسکرو تنخواه د کریسانف په قول داتلسمي پېړۍ په وروستیو کالونو کې په میاشت کې دروپۍ دهغه وخت د پیسو په حساب څلور روپۍ ورکوله(۱۱۳). دغه تاکلې اندازه تنخواه عسکروته په ټاکلي وخت کې نه ورکول کېده، اوپه همدې سبب سره عسکر مجبور پدل ،چې زیاتره وختونه دبې پیسه ګۍ له امله دخپل اس وسلې او کالیو خرڅولو ته لاس تیر کړي. ترڅو و کولای شي چې دلوږې څخه ځان بچ کړي .دغه وشرا یطو کله کله دوی مجبورول چې دعسکرۍ په څنګ کې په تجارت اوبل کسب باندې ځانونه اخته کړي(۱۱۴) .

---

۱۱۱- دمغلو دپوځونو توپك لرونکې عسکر چې آسونه یې هم درلودل، دنورو پلیو عسکرو په نسبت یې ۷-۸ ځلې چګ معاش اخیست. ددې موضوع لپاره لاندې کتاب ته مراجعه وکړي :

Irwine the army of the indian Moghuls: its organisation, and administration,London, 1903, p. 167.

۱۱۲- فیض محمد ،سراج التواریخ ،لومړی ټوك ۵۶ مخ.

۱۱۳- کریسانف میترو پالیت نوا پتراسکي، دمنځنۍ اسیا هیوادونو په باره کې، ۲۱ مخ.

114—G. Porster, A Journey from Bengal to England Vol. II, P. 49,29,86,88.

فیرپرلمکي: چې د ده په زمانه کې هغه سردارانو ته چې د عسکرې

په څېنو حالاتو کې دپوځ کشېو په وخت کې عسکرو ته پیسې ور کول کېدې، چې په هغه باندې د ځان لپاره د لارې خوړی برابر کړی. دمثال په توگه په ۱۷۹۶ کال کې ددې لپاره چې عسکر د کلیو خلکو چورولوته لاس ونه غزوی، اوددی کارامکان هم زیات و، نوشاه زمان هر عسکرته درې روپۍ ورکړې، چې دکابل نه تر اټکه پورې دلارې خوراگه ځانونوته برابره کړی (۱۱۵). ولې دومره باید وویل شی چې دغه پیسې تولو عسکروته ورنکړای شوې اوپه دې ترتیب سره عسکر مجبوروو، چې په خلکو حملې وکړی اوضرورت وړشیان یې پیسو ځانونوته واخلی. ج. فاستر دغه صحنې چې په ۱۷۹۳ کال کې داکوړی په شاو خوا کې په خپلو سترگولیدلی وی، داسې لیکی: «دملیخوتو فان» په خلکو حمله وکړه ... هرکلی چې دلارې څنگ سره پروت وو، ځانونه یې ورور سول، دوی نه یوازې خپل ځانونه هلته مړول، بلکه داسونو لپاره یې واښه او نور ضرروری شیان دخلکو څخه راتیول (۱۱۶). ددرانیانو قبیلی منظمو عسکری تولگیو دتنخواه له نظره دنورو قبایلو په نسبت خاص ماد ی امتیازات لرل. دگه. رااولین سن دمعلوماتو په اساس چې دگند هاردارشوف څخه یې دولت ته راوړی و، ددرانیانو قبیلې ایله جاری عسکری خدمت په لاندې شرایطو سره سېمي:

دهرشېږ وزروقبیلو - جایگیر څخه چې ددرانیانو قبیلې ته بخشش شوی وو، د دې جایگیرپه مقابل کې قبیلې دوه سپاره مرکزته رالیږل، چې په وار سره یې نوکری کوله.

---

115—H.R. Gupta, History of the sikhs, Vol. III, P.66

د ج. فاستر په قول په ۱ - ۲ روپیو باندې سپاره او نوکر دواړو کولای شول چې

شاهي پوځ ته دراتګ نه وروسته هر دراني سپاره په ځويشت تومانه تنخواه اخيستله چې د دې جملې څخه نولس تومانه په نغدي ډول په څلورو وارونو درې مياشتې وروسته ورکول کيده او پاتې برخه شپږ تومانه تنخواه يې د دولت نه د ځمکې د ماليې په ډول اخيستله .

که چيرې په کوم کال کې کوم عسکر پوځي خدمت ته نه حاضريده، يا يې له درو مياشتو کم خدمت اجرا کړی و، په دې صورت کې بيا هم هغه عسکر کولای شول چې د خپلې تنخواه څلورمه برخه واخلي(١١٧). د دې نه پرته دراني عسکرو ته يو لړ نور امتيازات او اسانتياوې هم برابرې شوې وې. د مثال په توګه د درانيانو قبيلې د جايګير په مقابل کې شاهي پوځ ته (د ځمکې د اندازې په تناسب) د نورو قبيلو په نسبت

---

117— Henry, C. Rawlinson,Report on the Dooranee tribes, dated, 19th, April, 1941 ("central Acontribution towards, the batter knowledge, of the topography, ethnology resources and history of Afghanistan compiled (. of political and military reference) by Lieutenant colonel,C.M. mac Gregor, assistant quarter master General" Pt. II calcutta 1871) PP. 824—827

راولين سن ليکي: چې د ٢٥ تومانونه دا بست انډيا کمپنی ٢٧٧ روپۍ جوړيدې. په يوه قلبه ځمکه باندې شپږ خرواره تخم کرل کيده. له يو خروار نه ٥٦٥ کيلو ګرامه جوړيدل، بغدانوف ليکي: چې يو خروار ٥٥٩ کيلو ګرامه کيږي .

(L—Bogdanov, the Afghan, weights and measures Jouranal of the Asiatic. Societyof Bengal ", Vol. 24, 1928No. 4, p. 421);

مغلي جايګير، ايراني تيول ، او د درانيانو قبيلې تر منځ د اندازې له پلوه دومره توپير نه وو. ولې اساسي فرق يې دا وچې د درانيانو جايګير ـ قلبه په ميراثي ډول

له شمېر عسکر راستول(۱۱۸)، او هم د زياتو مالياتو څخه آزاد وو، (لکه د څمکې او حيواناتو ماليه «خانه دودی» او نور...) دنورو قبايلو ايله جاری عسکروته دولت معمولا هيڅ تنخواه نه ورکوله، والی ددې سره سره دغو ايله جاری عسکر و په خوشحالي سره په لښکر کښيو کې برخه اخيستله.

په کابل کې بر تانوی اجونټ شيخ رحيم علی د ۱۸ پېړی په آخر کې ليکی: چی هيڅ ته دېوځ کښی په وخت کې افغانی عسکر په خوشحالی سره تلل. اگر چې (دغه ايله جاريوته تنخواه نه ورکول کيده) داځکه چې دجنگی غنايمو موضوع په منځ کې وه. (۱۱۹)

نگارنامی مولف ددرانيانو غير منظمو فوځونو په باب ليکی چی: د وی ته اجازه ورکړشوی وه چې دجنگ په وخت کې لاس ته راوړی غنايم ټول دځان سره راوړی. داځکه چې دوی ته هيڅ ډول معاش نه ورکول کيده. (۱۲۰)

کله کله که دولت ايله جاری د دروميا شتو څخه زياته ايساروله، نو په هغه صورت کې مې د يره لږه اندازه پيسې د بخشش په نوم ورکولې.

په ځينو حالاتو کې ايله جار ی عکسروته کوچنی غونډ ې معاش هم ورکول کيده، چې تقريباً پنځه روپۍ کيدې، ولې دغه معا ش د دولت بودجې نه ـ نه بلکه د فوق العاده مالي په شکل د کليو څخه ټوليده، او ددې مالي استثنا يي

---

۱۱۸ ـ د ۵، ۵۱۹۸ قلبوب جايگيرونو په مقابل کې چې د کندهار په ولايت کې درانيانو ته ورکړشوی وه، دوی پوره ۵۷۱۰ کسه دپادشاه پوځ ته دعسکری خدمت لپاره راوليږل، غيردرانيانو ، ختيکو، کاکړو او تر ينوته ټول ۱۱۰۰ قلبې

حالت وجود نه دراود، یعني د ملایانو او همسایه ګانو څخه یو ډول راټولیده (۱۲۱). داسې عنعنه هم موجوده وه، چې د جنګ ته تللي عسکر کورنی ته باید خپل خیل د خوراکې غله ورکړې. د ختیځ افغانستان په ځینو قبیلوکې داسې رواج موجود و، چې که فرضاً جنګ کې شامل عسکر خپل آس له لاسه ورکاوه نو د هغه آس قیمت د مخصوصې ذخیرې څخه ده ته سپارل کیده. دغه مخصوصه ذخیره د هغو ړېږو څخه جوړیده چې د جریمې او نورو اعانو له درکه دلارو، غرنیو درو، سیندونو او ګودرو نوساتنې لپاره ټاکل کیدل، دوی د حکومالیاتو څخه خلاص وو. کله کله دوی ته د ځمکې یوه برخه ورکول کیده یا د خپل ولایت له مالیاتو څخه یې معاش اخیست، د دې ډول مالیاتو زیاتره برخه خانانو په خپله مصرفوله (۱۲۲).

د کندهار او غزنی تر منځ د لارې ساتنې له درکه غلزایانو د مالیاتو په نوم په کال کې شلویشت زره روپۍ اخیستلې. اورکزیو، اپریدیو، شینوارو چې د خیبر درې په هاوخوا کې پراته وو، د دغې مهمې درې د ساتنې په نسبت د دولتي مالیاتو نه خلاص وو. د دې نه پرته دوی ته د پیښور په سیمه کې جایګیرونه ورکول کیدل، چې کلنې عایدات یې دولس زرو روپیو ته رسیدل. شاه شجاع د خیبر درې او سیمونکو قبیلوته په کال کې شپیته زره روپۍ ورکولې (۱۲۳).

---

121—M.Elphinstone, An account..., p. 533—534.

122—Ibid, p. 529; H—G. Raverty, notes on Afghanistan p. 269—270;

غبار، احمد شاه بابای افغان، ۱۱۲ مخ.

123—H.G. Raverty, notes on Afghanistan..., p.44—94—95; M. Elphinstone, An account..., p. 356; charles Masson, narrative

ددې قبايلو ټول عايدات د جايګير او معاش او نورو امتيازاتو له درکه چې د دراني کورنۍ څخه يې لاس ته کول په کال کې ۱۳۲ زره روپۍ کېدلې (۱۲۴).

هغه پلي غيرمنظم عسکري تولګي چې په بندروکې يې پوځي خدمتونه اجرا کول، ددوی تنخواه د هغه ولايت د مالياتو څخه حواله کېده، په کوم کې چې بندر پروت و.

د هغه امتيازات او پولي بخښېدونه چې قبايلو ته ورکول کېدل، نه يوازې له دې درکه وو، چې په دوي باندې د لارو ساتنه وګړي، بلکه د هغه عقب نشيني د دې لپاره وه چې قبايل د کاروانونو چورکولو څخه منع کړي. که بيا هم په لاروباندې کاروانونه چور کېدل، د قبايلو خانان مجبوروه، چې رسيدلي تاوان کاروان ته ورکړي. د هغه تاوان دوی د هغو کسانو څخه اخيسته، کوم چې د دوی تر واك لاندې و. اګر چې خانانو د حکومت څخه بخښښونه اخيستل، ولی دوې سره سره د نورو او معدونکو په عين وخت کې د سوداګرانو او ګرځندويانو څخه پيسي اخستلې، کوم چې د دوي له سيمو څخه تير پدل. (۱۲۵) يوازې هغه عسکر چې د کاروان په رکه يې کوله ددې دول پيسو ور کولو څخه معاف وو. د سوداګرانو واره ګروپونه، يا هغه سوداګر چې يوازې تلل په هرصورت څخه هيچ نه وو. (۱۲۶)

---

۱۲۴ ـ برنس، کابل په ۱۸۳۶، ۱۸۳۷ او ۱۸۳۸ کالونو کې د سياحت ياداشتونه، لومړی ټوك، مسکو ۱۸۴۷ کال ۱۸۱ مخ.

۱۲۵ ـ د مثال په توګه د هغه کتاب و ګورئ:

G. forster, A Journey from Bengal to England..., Vol. 11, P. 54, 55—57.

۱۲۶ ـ څنګه چې د خيبر قبايل هيڅکله د مرکزي حکومت تر کنټرول لاندې نه وو،

د پلېو غیر منظمو ټولګوته ، چې په بند رونو کې بې خدمت کاوه ، د مربوط ولایت له خوا تنخواه ورکول کېده .

دقبیلوي خانانو عسکري ټولګیوته د جنګ په وخت د پوځونو قوماندانانو په خپل مصرف ډوډۍ او وسله ورکول .

دقبایلو خانانو، دعسکرى ټو لګیو ساتنه او ددوی دجنګی وسلو برابرونه دخانانو قوماندانانو په غاړه وه . هغه عسکری ګروپونه چې ددرانیانو بادشاهانو له خوا نیول شوي و سیموته استول کېدل او هلته دپوځي خدمت لپاره ځای په ځای کېدل ، دوی ته يې د پوځي خدمت په بدل کې د ځمکو ټوټې ورکولې چې په «فرد» یا « زوج » سره یادېدلې. «فرد» د «زوج» نیمايي برخه کېده . «زوج » سپاره او «فرد» پلی عسکر ته ورکول کېدل ( ۱۲۷ ) . مهاجرو عسکرو ځپله ځمکه معمولا په اجاره ورکوله ، داهم بايد وويل شي چې مهاجروته ځمکې په میراثي توګه ورکول کېدې، په دې معنی چې د پلار مرګ نه وروسته زوی ته هغه ځمکه رسېده . دادول ځمکې مهاجرو عسکرو ته دهندوستان نه سربېره په افغاني سیموکې هم ورکول کېدې .

ددې ډول عسکرو شمېر زيات وو، دمثال په توګه د بلخ په ښاو خوا کې د احمدشاه دراني په فرمان سره پنځوزرو پښتنو مهاجرو عسکروته ځمکې ورکړشوې . دشکارپور په سیمه کې درانی بادشاه دراني پوشمېر سدوزایان په ۱۷۵۲ کال کې دمهاجرو عسکرو په صفت دملتان په صوبه کی واچول . همدا ډول د پښتنو مهاجرو عسکرو زيات شمېر دلاهور په جنوب «کاسور» کی ځای پرځای شول. دپاني پت تاریخي کامیابی نه وروسته چې مرهټو سخته ماتي وخوړه، احمدشاه دراني زيات شمېر پښتانه د مهاجر و عسکرو په صفت هندوستان ته واستول، او هلته يې دوی ته دځمکو لوی جایداد ونه

ور کړل (۱۲۸). ددرانیانو امپراتورۍ په هندي ولایتونو کې چې پښتنو سردارانو
کله کله دبادشاه څخه دجاګیر په شکل مکمل «محلونه» اخیستل، نو هغه دوی له
کرنې سره غرض نه درلود. دحکمو څخه یې مالیات ټولول د هغو بزګرانو حالاتو څخه یې
ځانونه نه خبرول، چې ددوی جاګیرونه یې کرل. همداوجه وه، چې ځمکه او د هغه
بزګران بیا هم هندي ملک ته وربانې وو. داهم باید وویل شي چې جاګیردار پوازې
دقانون په رڼا کې کولای شول، چې دجاګیر څخه هغه مالیات او محصولات واخلي،
چې خزانې ته تحویلیدل. ولې په عمل کې ددوی لاس چا نه شو نیولای. دوی ته چې
هرڅه په لاس ورتلل، په اعظمي صورت یې دبزګرانو څخه شو کول. په همدې دلیل
سره په پنجاب کې دسکانو کر که چې زیاتره برخه یې بزګران وو، په اوله درجه کې
دبې شمیره جاګیردارانو په مقابل کې وه (۱۲۹).

ف. انګلس لیکلي چې: داردو تاکتیکه، ستراتیژي په وسله سمبالول،
ساز سان ورکول او ترکیب له هر څه نه اول د اقتصادي شرایطو په سطح
پوري تړلي دي (۱۳۰)

---

۱۲۸- فیض محمد، سراج التواریخ، لومړی ټوک، ۵۶ مخ،.

M. Elphinstone, An account..., p. 474—475; J. Burnes, Narrative of a visit to the courtof sinde and Hyderabad of indus, Edinburgh—London, 1839, Appendix, P.22: Mohammad Aslam. farhatu—n Nazirin

H.M. Elliot—John Dowson the History of india... vol. VIII, p.171); Jadunath sarkar, fall the mughal Empire, vol. I. p.246

د احمد شاه دراني او دده جانشینانو اردو هیڅکله نه شواى کېدلاى ، چې
سنټرالیز شي، دې اردو هم د درانیانو امپراتورۍ د نورو اداري سازمانونو په شان دوه
مخه لرل او دا یې دا و ، چې په پښتنو کې د درانیانو امپراتورۍ جوړښت نه وروسته
د تولیدي مناسباتو هغه زاړه فورمونه چې د خپل قبیلوي سیستم خصوصیات لرل ، په
ډېر قوت سره په پښتني ټولنه کې دوام وکړ

پښتنو اردو د درانیانو بادشاهانو په عصر کې د منظمو وسله والو پوځونو، د شاهي
گارډ، د خانانو له سپرو ټولگیو او د قبایلو له ایله جاریو څخه جوړېده ، ولې غلام خانه
«شاهي گارډ» د بادشاه هغه اساسي قوه وه ، چې د هغې په مرسته یې د یوه خاص جنگي
میخانیزم په صفت د قبایلي خانانو د خود مختارۍ ماتولو لپاره ورځنۍ کار اخیست.

د خانانو عسکري ټولگۍ، د قبایلو ایله جاري چې د امپراتورۍ وسله والو قوا وو
زیاتره برخه یې تشکیلوله ، د بادشاه او امرو ته هیڅ وخت په ټوله معنی سره تابع نه وو،
او له بلې خوا د دوى په منځ کې داخلي روابط هم ډېر سخت او کمزوري وو .

د پښتنو عسکرو په ځینو ټولگیو کې داخلي نظم او دسپلین ډېر ټینگ و ، ولې
په عمومي صورت د ټولې اردو په سویه د غه نظم او دسپلین وجود نه درلود . دغه
وروستني حالت د پښتنو اردو ته ډېر خطرونه متوجه کول . د مثال په توگه کله که
دغه اردو د قوي دښمن سره مخامخ کېده ، او د ماتې امکان ورته پیدا کېده ، نو ځینې
عسکري ټولگۍ د بادشاه له اداري څخه وتل او په نتیجه کې اردو ټوټه ټوټه کېده.

د تابعو سردارانو وسله وال پوځونه د درانیانو امپراتورۍ په عسکري قوه کې
په دایمي ډول نه پاتې کېدل . تابعو سردارانو په خپله خوښه او فکر سره د خپلو عسکرو
د تشکیل، وسلې او تنخواه برابرولو نه حل کول ، حتی هغه یې شمېره عسکري ټولگۍ چې

څنګه چې د درانيانو پاد شاهانو اردو مهمه برخه داختصاصي عسکرو څخه جوړه شوې وه ، او زیاتره برخه د د هقانانو او مالدارانو څخه تشکیل شوې وه ، نو په همدې سبب دوی نه شوای کولای چې د زیاتې مودې لپاره د خپلو کورونو څخه ځانونه جدا کړي . همدې عادت دوی ته داموقع برابروله ، چې په او ږدو جنګونو کې د ټوی دښمن په مقابل کې د جنګ نه لاس واخلي ، داهم باید وویل شي چې د راني پادشاهان په جنګ کې د محاذ نه ور وسته پاتې برخې څخه هیڅ وخت دا ډه نه وو . دوی نه شوای کولای چې د افغانستان له اساسي هستې «پایتخت» څخه د زیات وخت لپاره ځانونه لیرې کړي (۱۳۱) .

د احمدشاه دراني د جنګي عملیاتو د مطالعې په لړ کې مونږ نه شو کولای له دې حقیقت څخه سترګې پټې کړو ، چې پښتنو څنګه په چټکتیا د جنګ په لومړیو ورځو کې دښمن پوهنا کاوه . په هندوستان باندې د احمدشاه د ریمې حملې له سره څلور میاشتې (د ۱۷۵۱ کال د یسامبر نه د ۱۷۵۲ کال تر اپریل) پورې وخت ونیو . څلورمې حملې شپږ میاشتې (د ۱۷۵۶ کال د نوامبر میاشتې نه تر ۱۷۵۷ کال اپریل پورې ) دوام وکړ . نورې پوځ کشۍ تقریباً د دې څخه هم لنډې وې .

په دې باره کې یوازې د پانۍ پت جګړه استثنا بللای شو ، په دې معنی سره چې احمدشاه دراني د مرهټیانو د سرکوبۍ لپاره هندوستان ته د ۱۷۵۹ کال په اکتوبر کې راغی او د ۱۷۶۱ کال مارچ میاشتې پورې پاتې شو ، چې تقریباً یونیم کال وربانډې تیر شو . د احمد شاه جانشینانو تیمورشاه او شاه زمان د پوځ کشۍ وخت د یر لنډاو معمولا

---

۱۳۱ـ دشاه زمان د سلطنت په دوره کې د دراني پادشاهانو د شالورې محاذ کمزوري

دروغلورو میاشتو څخه یې زیات وخت نه نیو. همداعلت و، چې که پښتنو جنګ کې کامیابي حاصلو له، نو دښمن په کلي تباهي پسې نه ګرزیدل.

کامیابي یې غنیمت ګڼله، او دښمن لږ وخت وروسته بیاسر را پورته کاوه، پښتنو هیڅ وخت دا کوشش نه کاوه، چې دجګړې ګټلي میدان دخان لپاره ټینګ کړي.

په دې ترتیب سره ویلای شو، چې د درانیانو اردو دلندې پوځ کشۍ په وخت کې دحرکت چټکتیاله پلوه چې دجنګي غنیمت هیله هم پکښې موجوده وه، ساری نه درلود. ولې دغه مجهزه اردو د دغه دښمن په مقابل کې چې جنګ یې ځنډاوه، اوددوی سره یې مقابله کوله، د ژبو مشکلا تو سره مخامخ کیدل.

داحمد شاه دراني دسلطنت په وروستیو کالونو کې کله چې د پښتنو اردو دسکانو سره مقابلې ته مجبوره شوه، نو دا قدرت یې نه درلود، چې دښمن له منځه یوسي. د دې کار یو علت هم داو، چې سکان په پرله پسې جنګونو کې نه یوازې تربیه، بلکه زړه یا خه شوی هم و و. ځینې اسناد دا وايي چې احمد شاه دراني غوښتل په ۱۷۶۶ کال کې په سکانو حمله وکړي، ولې اردو د دې کارڅخه انکار وکړ.

او په مقابل کې بل علت ممکن دا هم وی، چې پښتنا نه سرداران په هند باندې د پخوا پوځ کشیو په وخت کې ماره شوي و و، او زیات مالونه یې لاس ته کړي وو. فاستر لیکي: چې داحمد شاه داردو نه لوی لوی عسکري ټولکي بیلیدل، دوی خپل بادشاه په میدان کې خوشې کاوه، او پخپله افغانستان ته راتلل. داځکه چې دوی له هندوستان نه دپوځ کشیو په وخت کې پوره مال لاسته راوړی و (۱۳۲). کله چې احمد شاه درانی په پنجاب باندې دنهم ځل لپاره حمله وکړه (د ۱۷۶۸ کال دسمبر د ۱۷۶۹ کال نومبر)، دسکانو سره د سختې مقابلې په نتیجه کې دپښتنو سردارانو

شمېرېږي د واسو زروته رسېده ، بېل او د کابل خواته راستون شو( ۱۳۳ )دې کار احمد شاه مجبور کړ ، چې په پنجاب باندې د پوځ کشي نه لاس واخلي. دشا ته راتګ (عقب نشیني) په وخت د پښتنو په اردو کې اعتصاب شروع شو ، چې د هغه په نتیجه کې د پادشاه کمپ او د ده ډېرښو دې خپلوان یکې و وژل شول(۱۳۴).

کله چې د پنجاب پرای سیمو زیاتره برخې د پښتنو څخه سکانو وا خیستې ، نو د ې حالت وسله والو قواوو لپاره د مرکګ معنی ارله . ځکه چې د نوموړ یو سیمـــو لاســه وتو سره د پښتنو دولت زیات عایدات له لاسه ورکړل . ج. فاستر لیکي: چې د تیمور شاه دراني د سلطنت په موده کې چې په دولت کې د عایداتو کمه ښېکړ تیارا غلې وه، د هغه زیات تا ثیر تر تواوز پات د منظمو پوځونو په وضع باندې ښکاره شو (۱۳۵).

د درانیانو امپرا توری په دوره کې که له یوې خوا د قبایلو خانانو په فیودالي ملکیت موضوع لیاقوت اخلي، نو له بلې خوا د فیودالي قوتو د رشد سره د مرکزیت وضع لا پسې کمزورې کېږي. د د ې جریان په نتیجه کې مکمل ولا یتو نه په تدر یجي ډول د مرکزي حکومت د کنترول څخه وځي .د د ې پروسې (جریان) سره په ځنګ کې هغه دولتي ځمکې چې د مخه د هغوی عایدات په شاهي ګارد باندې لګیدلی و د دو لت له لاسه ووتې . د ې پروسې هم په خپل وار سره د د رانیا نو امپرا توری عسکری سیستم خاصتا د کمزوری خواته کشاوه . ټول اسناد چې په د ې دوره پورې اړه لري ، دا خبره په یوه خوله کوي، چې د درانیانو د امپراتوری کمزوری د تیمورشاه اوشاه زمان د سلطنت په دوره کې دا حمدشاه درانی د سلطنت دورې په تنا سب ډېره

---

Journey from Bengal to England,... Vol.

زیاته شوه (۱۳۶). په دامې شرایطو کې داحمد شاه دجانشینانو دا کوشش چې مرکزي حکومت ټینګ کړي، دپښتنو قبایلو خانانو خود مختاري ما ته کړي ا و بالا خره فیوډ الي قوتونه کمزوري کړي ترڅو دقوي مرکزيت اساس کښېږدي دا ټول کوششونه بې فایدې وو .

دنولسمې پېړۍ په لومړیو کالو نوکې په افغاني جامعه کې په ځمکه باندې دخانانو دزیاتو فیوډالي منا سباتو رشد اودهغه پر مختګ له هرڅه دمخه په دراني قبایلو کې قوي شو .

داجریان د دراني قبایلو په منځ کې د نه انو لي منا سبات لا ټینګ کړل . د قبایلو هغه آزاد غړي چې پخوا یې د ځمکو ابړ غو ندې ملکیت درلود، دځمکونه خلاص اوورو ورو دفیوډ لانو کوچني ممتاز اقلیت تابع شول . د درانیانو قبایلو ایله جاري قوه چې دغیر منظمو پوځونو اسا سي هسته یې جوړوله ورځ په ورځ بې خپل پوځي ارزښت له لاسه ورکاوه، او په مقابل کې دد رانیانو دلویو خانانو ځانګړي پوځي ټولګیورول زیاتیده په دې ترتیب سره د درانیانو امپراتوري د پوځي سیستم شرایط له بدلون سره سم دخپلو پخوانیو هدفونو دساتنې سره په مخالف قطب کې ودرېد .

---

۱۳۶ - داحمد شاه دراني دجانشینانو پوځي قوتونو په باره کې د و مره باید

د (۱۹) پېړۍ په اوایلو کې د درانیانو امپراتورۍ بین المللي وضع بد له
شوه د شاه مراد منگیت (۱۷۸۵ — ۱۸۰۰) د حکومت په دوره کې شمال پلو ته
د بخارا سرداري محکمه شوه، لوېدیځ لوري ته د ډیرو کالونو فیوډالي
شورشونو نه وروسته، د پارس زیاتره برخې د قاجارانو لاس ته ورغلې. امپراتورۍ نور
داقدرت نه درلود، چې د خپلو گاونډیانو حملې شنډې کړي. لوی لوی ولایتونه
یو په بل پسې د پښتنو له امپراتورۍ جدا کېدل، تر څو دغه امپراتورۍ د زوال سره
مخامخ شوه، او د هغه زوال سره یو ځای هغه پوځي سیستم چې د احمد شاه دراني
د سلطنت په دوران کې جوړ شوی و، هم سقوط وکړ.

# خاتمه

د دنیا نوا مپراتوري د پښتنو اول دولت نه و. لا په ۱۶ پېړۍ کې د ختیځ افغانستان په هغه سیمه کې چې ختک اوسېدل دوی په اجتماعي اقتصادي لحاظ ډېر پرمختګ کړی و. داځکه چې په دوی کې د ما قبل التاریخ ابتدایي اجتماعي ټولنې ځای په ځای میشته کېدو پروسه او د فیوډالي روابطو ده نسبت نورو قبایلو ته زیاته پرمخ تللې وه. (۱) د اکوړې او ټېرې په نومونو سره دوې فیوډالي سرداري جوړې شوې وې. په ۱۷ پېړۍ کې د اپریدیو په سیمه کې نسبتاً اوږه سرداري منځ ته راغله (۲) ولې د غولوسړیو فیوډالي سرداریو ډېره وړه سیمه نیولې وه او د هغوی

---

۱- د ما قبل التاریخ ابتدایي اجتماعي ټولنې د ځای په ځای میشته کېدو
پروسې لپاره د ای. م. ریسنر کتاب «د پښتنو دولت او په دوی کې د

ځکه د دولت هسته جوړه نه شوه، په کومه کې چې د افغانانو ټولې ځمکې راغلې وای . همدا ډول هغه دوې وړې سرداری چې په لویدیځ افغانستان کې جوړې شوې هم د دولت هستې نه شوې .

داوروستي دوې سرداري يوه د هرات او بله د کندهار وه . دی دوو (سرداریو) پراخې سیمې نیولې وې او د افغانستان د خلکو لپاره یې مهم رول لوبولی و . د کندهار سرداری په سر کې د غلجیو قبیلې مشرولاړه، او د هرات سرداری په سر کې د ابدالي قبیلې مشر . (۳) د دې دووسرداریو ترمنځ رقابت او دښمنۍ نا دراقشارته داموقع ورکړه چې دواړه له منځه یوسي . یوازې احمد شاه درانۍ وکولای شول چې په خپله امپراتوری کې د ټولو پښتنو ځمکې راټولې کړي او دغه دولت د افغانانو ملي دولت وګرځید .

د يوه واحد دولت د جوړيدو لپاره د ټولو افغانانو د وحدت مفکوره په ۱۷م پیړیو کې د خارجي یرغلگرا نوسره د جنګ په لمبو کې وزیږیده . داخرګنده ده چې د بایزید انصاري (۱۵۸۱-۱۵۲۵) زامنو دیر کالو د مغلوسره مبارزه کوله، او خپل ځانونه یې د افغانانو باداشاهان بلل . (م) د ۱۷ پیړی اویاوموکالونو کې د مغلو په ضد د پښتنو د ازادی نهضت رهبر، نامتو پښتون شاعر وطنپرست خوشحال خان خټک (۱۶۹۱-۱۶۱۳) په خپلو شعرونو کې افغانان دې ته رابلل، چې قبیلوی مخالفتونه پریږدی او د ګډو

---

۳- سلطان محمد خان درانی، تاریخ سلطانی، ۹۹ مخ غلام حسین مقتدر،

دښمن په مقابل کې په مبارزه کې سره متحد شي . ولې دمتحد ازاد افغانی دولت دجوړېدو لپاره یوازې د ۱۸ پېړی په نیمایی کې شرایط برابر شول. دا وخت که له یوه طرفه دپښتنو او ځایي قبایلو فیوډالي روابطو دوده پېدا کړ که ، داخلي شرایط برابر شول ، دولتي وحدت منځ ته راغی نو د بلې خوا خارجي شرایطو هم تغییر کړی و . دې مساعدو شرایطو احمدشاه دراني ته دا موقع ورکړه ، چې دافغانانو ځمکې په یوه واحد دولت کې راټولې کړي . دپښتنو دآزاد دولت جوړښت دافغانی ټولنې دپاسني قشر منافعو سره سم و .

پدې پاسني قشر کې دقبایلو خانان او روحانیون راتلل . افغانی دولت دغه پاسني ممتاز قشر ته موقع ورکوله دوسلې صفت د استثمار شوې ټېټې طبقې په ضد کار ورځنې واخلي . پدې استثمار شوې ټېټې طبقې کې غیر مساوی همسایه ، غریبان او دفیوډالي طبقې دفشار لاندې دټولنې آزاد غړي راتلل . د افغاني دولت جوړښت په عین وخت کې ددې سبب شو ، چې دافغانی ټولنې اوسېدونکي دایراني اسلامي فیوډالانو له استثمار نه خلاص کړی . دې نه پرته دافغاني دولت په جوړښت سره پښتنو فیوډالانو کولای شول ، چې د همسایه هیوادونو په نیولو کې ددې ځانګړی دولتي ماشین نه استفاده وکړی .

افغاني آزاد دولت جوړښت خصوصاً په اولو وختونو کې دافغاني ازادو ټولنو ـ بزګرانو ، مالدارانو او نورو له خوا دفاع ولیده ، داځکه چې دوی

کې و، ولې بیا هم دوی ونه شوای کولای چې مخامخ د خپلو قبایلو مستقیم استثمار ته لاس تیر کړي.

همدا دلیل و چې د پښتنو دولت تشکیل په اوایلو کې د ټولنې د ساده غړیو له پاره مساعد شرایط برابر کړل. د دې مساعدو شرایطو د ټولو له زیات د احمدشاه درانی د شاهنداره کامیابو او په پوځ کښیو کې په غنیمت نیولو کې ځان ښکاره کړه. تر کومه پورې چې مونږ ته څرګنده ده د دې پوځ کښیو منفي عواقب د افغاني قبایلو په ازادو او مساوي الحقوقو غړیو باندې ژر تر ژره منځ ته را نغلل. د نادر افشار د امپراتورۍ ختیځې سیمې چې د سیمې د افغاني امپراتورۍ د جوړښت له پاره اساسي هسته وګرځیده یو ځل بیا د فیوډالي انارشۍ او د قبایلو تر منځ د داخلي قبیلوي شخړو اساس بنا کړه. دا سیمې د نادر افشار د سلطنت په وروستیو کالونو کې د زخم شنې غوښې ته ورته وې چې د ده لویه امپراتوري یې خوړله، او په ډیره ناوړه توګه یې دا رتو تودو په سر نوښت اغیزه کوله.

په دې اساسي برخه کې چې د درانیانو امپراتورۍ اساسي هسته یې تشکیلوله د احمد شاه له خوا امنیت او نسبي د سولې ودرول شول، کوم چې د دې سیمو او سیدونکو یعنې بزګرانو، کسبګرانو، سوداګرو، ساده کوچیانو او خصوصاً د کندهار ولایت خلکو په ګټه وو. د احمدشاه دراني د سلطنت

او کوچیان وو. پدې ترتیب سره داحمد شاه دراني تر ادارې لاندې دافغاني دستقل دولت جوړښت چې دافغاني ټولنې د پاسني قشر دگټو په غرض جوړشوی و دافغانانو سختې حمايې سره مخامخ شو.

داځکه چې د نوی افغاني دولت زیاتره سیمې ډیروخت دايراني او مغلي دولتو-نو تر ژغ لاندې وې. ددې نوی دولت دفاع نه یوازې پښتنو کوله، بلکه دغیر پښتنو اوسیدونکو له خوا هم سرته ورسره روانه وه، کوم چې دفیوډالي انارشۍ نه رټټړي شوي وو.

مونږ فکر کوو، چې همدا دليل ددې سبب شو چې د پښتنو امپراتورۍ زیات قوت واخیست او زر تر زره داحمدشاه دمرگ نه وروسته دسقوط سره مخامخ نه شوه او تر هغه وخته پورې پاتې شوه تر څو داخلي پروسو دبریک وهلو مرحلې ته و نه رسوله.

درانیانو امپراتورۍ ابتدایي فیوډالي دولت و. په همدې دلیلو چې په دولتي نظام او پوځي سیستم باندې دوه گونه تاپې لگول کیدې داپدې معنی چې پرمخ تللې فیوډالي ټولنه او قبیلوي نظام و روسته پاتې اجتماعي دوسسې دغه دوه گونه خصلت دادې تعریفوي: که یوې خوا د پښتنو

---

مسکۍ. راولینسن لیکي چې ددې نا قلينو شمير زر مخ پسه زیا تیدو و. ددوی دشمیر زیا تیدل په هیواد کې دوضعی عادی کیدو سره تړلي وو.

Henry C. Rawlinson, Report on the Dooranee tribesdated 19th April 1841

په امپراتورۍ کې د هند او ایران سیمې چې د احمدشاه په قوت نیول شوې وې ډېرې پېړۍ د مخه د فیوډالي او بوروکراتیک ماشین نه برخورداره وې نو د درانیانو امپراتورۍ د پښتنو په سیمو کې د داسې روابطو ار له واره درول نا ممکن و، د بلې خوا افغاني خوان فیوډالي دولت د ضرورتونو په صورت کې په دایمي توګه د قبیلوي نظام نه استفاده کوله. دا ځکه چې افغاني قبیلوي ارسطوکراسي لا تراوسه دومره نه وه قوي شوې چې وکولای شي د پېړیو پېړیو عنعنوي اجتماعي-اقتصادي قوانین مات کړي. برعکس د افغاني ټولنې استثمارګرو لپاره د دې قوانینو ساتل تر زیاتې اندازې پورې په ګټه هم وو. دا ځکه چې د ساتل شوي افغاني قبیلوي سازمان طبقاتي وده کوونکي تضاد د باندې پرده اچوله، او دا موقع یې برابروله چې د قبا-یلو جنګي قوت د سترو پوځ کشیو لپاره استعمال کړي د دې سره په ځنګ کې د درانیانو امپراتورۍ د تشکیل نه وروسته چې دولتي ماشین یې ترلاسه کړ، افغاني قبیلوي ارسطوکراسي او د مسلمانانو روحانیونو دغه ماشین د فیوډالي روابطو او فیوډالي ادو ټینګولو لپاره استعمالوله د افغانانو فیو-ډالي روابطو وده یې ډېره چټکه کړه خانانو ته د مالیاتو ټولونې واک ور کاوه او په هغو سیمو کې چې د دوی قبیلې اوسیدلې دوی ته یې اداري، پوځ او قضاچارې سپارل د قبایلو ارسطوکراتیک دریځ لا ټینګښت کړ دې کار د دوی سره د امرسته کوله چې د قبایلو خانان په پرله پسې توګه خپل فیوډالي پوزیشن لا محکم کړي، د فیوډالانو زمیندارانو

نه یوازې ځینو ته چې د ځمکو له لارې پېژندل، خانان نور هم ځان ته را نږدې کول او بیا یې د دوی په مرسته د مالیاتي سیاست پرمخ بیوه او هم یې د پښتنو او غیر پښتنو پر ګرانو مقاومتونه په دوی ماتول (٦)

پادشاه چې د دولت رئیس بلل کېده په اولو کالو کې د پښتنو قبایلو ارسطو کراسي له خوا پوره مرسته ورسره کېده. دا ځکه چې د دوی ګټې مشترکې وې. ولې د دې په څنګ کې دا هم باید وویل شي چې د قبایلو خانانو خپله آزادي ساتله. دا ځکه چې دوی د مرکزي حکومت حسادت د دې پا صورت کې له نظره نه‌شو غورځاوه. دوی د مرکزي حکومت قوت تر هغه حده تحمل کولای شو، چې د دوی د ګټو سره یې ټکر نه کاوه. که پادشاهانو کوښش کولای چې دوی مرکزي حکومت ته تابع کړي، نو خانان به د سخت پرابلم سره مخامخ کېدل.

پدې ترتیب سره د افغاني قبایلو فیودالي ارسطو کراسي، چې د پرو نماینده ګانو یې خپل ځواکونه په خپل اختیار کې لرل او د خانانو او ټولګیو په څېر یې عمل ورسره کاوه، دوی کولای شول په خپلو سیمو کې په خپلو قبیلو باندې بې حده کنټرول ولګوي. خانانو د مرکزي حکومت په مقابل کې د مرکزي تیزم هسته روزله. دا قوت د دې سبب کېدای شو چې د مرکزي حکومت پر والي د بحران او خطر سره مخامخ کړي.

ترهغه پورې چې احمد شاه په کامیابۍ سره فتوحات پرمخ بیول د هغه په جریان کې افغاني خانان غني کېدل، د نورو اولسونو څخه یې بې دریغه مالونه اوځمکې ترلاسه کول. او بیا په خپله احمد شاه په ډېره مېړانه سره د قبایلو خانانو ته سوغاتونه ورکول نو دوی په ډېره خوشالۍ سره د درانې پادشاه دفاع کوله او حتی د دې حوصله یې هم لرله چې کله ناکله په خپلو داخلي چارو کې تر یوې اندازې پورې د پادشاه مداخله ومني. ولی وضع هغه وخت بدله شوه، چې افغاني پوځونو په ماتې خوړلو پیل وکې.

داوخت افغاني سردارانو زیار یوست چې، دوی ته په هند کې رسیدلي تاوانونه په خپله خاوره افغانی سیمو کې د دولتي ځمکو په نیولو سره پوره کړی او هم خپل عایدات د هغو کمو اجارو له پلوه زیات کړي چې دولت ته یې ورکول. دوی که د دولتي اجارو له درکه دولت ته لږ عایدات ورکول نو په عین وخت کې د بزگرانو لپاره داجارې اندازه پورته کوله، چې دې حالت افغانی آزادې ټولنې او هم بې واکه بزگران مقاومت ته راپارول. (د دې لپاره د کابلستان تاجکو اودزرمت غلجیو شورش په گوته کولای شو)

دشاه زمان څخه د پښتنو خانانو دخپگان په باب فریر لیکی: چې (د پښتنو سردارانو دشاه زمان څخه د ځمکو زیاتوالی او دمالیاتو کموالی رته غوښت) ولی زیاتره ئې ختو نه ددوی غوښتنې نه منل

مستقیم چورول او د بې حسابه جنګونو په نتیجه کې (۸) د اضافي تولید عمومي اندازه کمېده) د دې سبب شول چې مرکزي حکومت سره د یو ځای کېدو غوښتنې سستې شي. دوی کوشش کاوه، چې د فیوډالي اجارې په حصه کې خپله برخه زیاته کړي. دا هغه عایدات وو چې مخامخ د پادشاه خزانې ته راتلل او کموالی یې طبعاً د مرکزي خزانې په ضرر تمامېده.

د افغاني فیوډالي ارسطوکراسۍ د قدرت ټینګولو او انشعاب ګری تمایلاتو په مقابل کې د دراني پادشاهانو یوازینۍ وسله: ګارډ (د مختلفو قبایلو ـ ایراني او تاجکو څخه جوړ و) اداري بوروکراسي او روحانیون وو، کوم چې د پادشاه خیرات ته سترګې نیولې وې، د امرا تر څنګ یې مختلفو ولایتونو کې د هندي سوداګرو او سودخورو قشرونو نمایندګان ډېر ؤ د غه سوداګرو د افغاني پادشاهانو پوځ کشیو سره مالي مرسته کوله او د مالیاتو اجارو نه یې زیاته ګټه تر لاسه کړې وه. اما د غه ټولې قواوې په ښکاره ډول کافي نه وې چې د افغاني خانانو په مقابل کې مقاومت وکړي د دې وضعې دراني پادشاهان دې ته مجبورول، چې د خپل قدرت ټینګولو لپاره نوې لازمي لارې چارې ولټوي.

د بارکزو دوستې قبیلې خانانو د کمزوري کولو لپاره احمد شاه

---

۸ ـ م. الفنستون لیکي چې، د ملتان په سیمه کې د کلیو زیاته برخه په کنډوالو بدله شوې وه.

دراني ددې قبيلې څخه اڅکزي بېل کړل . د غلجيو قبيلې ته چې تر ټولو ستره قبيله وه دااجازه يې نه ورکوله چې ځان ته د قبيلې رهبر واري . ددې قبيلې په نورو شانګو باندې يې د درانيانو قبيلې څخه دراني سرداران دحاکمانو په حيث مقرر کړل . (۹)

ددې لپاره چې د ختکو قوت مات کړي ، احمد شاه د راني ددې قبيلې رئيس داکوزي چې حاکم په مقابل کې يې دتيري خان تقويه کړ هغه ته يې هم د حاکم لقب ور کړ .

دغه دواړه حاکمان په عين موقف کې يو د بل ضد ودرول شول . ددې نه پرته داکوزيو حاکم دتيري حاکم په نسبت ستر بلل کيده او دتيري حاکم د هغه دلاس لاندې و (۱۰)

احمد شاه داکوښښ هم وکړ ، چې د دراني قوى خانانو په مقابل کې يې دختيځو سيمو افغاني قبايلو خانان ودرول . دهمدې مقصد لپاره په افغاني خاوره کې د مصنوعي تشکيل له رويه د برو درانيانو نوم جوړ کړ شو، په کومو کې چې يوسفزي، ترکلاني ، مومند ختک او نور قبايل شامل وو .

دې ټولو کوښښو نو ونه کړای شول چې مرکزي حکومت دافغاني قبايلو دخانانو د تابع کولو سوالحل کړي .

خبره داده چې افغاني قبايلو او ددې ي خانانو تقريباً په ټول قوت سره خپله جدايي ساتله او د مرکزي حکومت ترفعال کنترول لاندې

نه‌وو وا غلی . دا کار د دراني پا د شا ها نو د کمزورتیا اساسی تکی
پلل کیده . لکه څرنگه چې د دغه دوویل د قبا یلو خا نا نو د پا د شا ه
د قدرت په ټینګولو کې تریوه تا کلی حده پورې ملګر تیا کو له . دا
تر هغه ځا یه چې د دوی د ګټو سره یې سر خوړ . دوی د پا د شا ه د فا ع تر هغه
وخته کوله ، ترڅو پا د شا ه د دوی سره د غیرو پښتنو او آزادو پښتنو
دځمکو په لاسبو لو کی مرسته کولا ی شو ه .
عجیبه خو دا ده ، چې د دولت در ئیس د وظیفو له مخې دې دول
چوړ قا نوني بڼه غوره کوله . د قبا یلو خا نا ن پدی خوښ وو ، چې
پا د شا ه دا رتې جهان کشا یې سیا ست پر مخ بوزی . د لښکر کشیو په
مقا بل کې یې پا د شا ه ته د ا رګا نیزا تور او رهبر په سترګه کتل او
د هغه نه یې د فا ع کو له . و لی د پا د شا ه ټول هغه عملیات چې د خا نا نو
د قدرت او استقلال محدود یت ته متوجه وو ، د خا نا نو له خوا یې په ځر ګنده
مقا ومت لیده . حتی د احمد شا ه د را ني د قدرت په مقا بل کې څو واره
دا افغا ني خا نا نو له خوا شور شو نه تر تیب شول . ( ۱ ) اګر چې احمد شا ه
د خپل قوی پوځ او پا لخا صه د خپل ځا نګـړ ی
ستر حیثیت په مر سته و کولای شول ، چې د ټـه شور شو نـه
ما ت کړ ی ، او په بې رحمی سره د توطیه کوونکو سره حساب و کړ ی .
و لی ده ونه کړا ی شول چې د توطیه کو ونکو او شورشیا نو ریښی له
بیخه وباسی . ځکه هغه امورا تو ي چې اساس یې احمد شا ه ایښی و

د خطر له مخې کمې نه وې .

د احمدشاه دراني د مرګ نه وروسته په افغانستان کې د افغاني قبايلو خانانو فيودالي روابطو په چټکۍ سره وده کوله . دوی دولتي حکمې غصبولې . په همدې وخت کې هغه اولسونه چې احمدشاه تابع کړي وو د دوی مقاومت زيات شو . د غه وضعې نه يوازې په پنجاب ، بلکه په شمالي سيمو او په جنوبي ترکستان کې دوام پيدا کړ . د غو ټولو حالاتو مرکزي خزانه د مالياتي عايداتو له پلوه تر زياتې اندازې پورې خالي کوله ، (پدې وخت کې د پنجاب زياته برخه د سيکانو له خوا نيول شوې وه ) او دراني پادشاهان د قبيلوي خانانو متابعت ته مجبور يدل . دا لکه چې اوس د دوی سره په پوره اندازه وسايل په لاس کې نه وو ، چې قوي جنګي ګارد وړ باندې وساتلای شي . تيمورشاه اګر چې وکولای شول چې د قبايلو خانانو ، تابعو سردارانو او د ولايتونو حاکمانو شرګند شورشونه مات کړي . د مرکزي حکومت تاثير خصوصاً په لرې ولايتونو کې ورو ورو کمزوری کېده . فاستر د ملتان حاکم په دې باره کې ليکي ، چې د غه حاکم د مرکزي حکومت يوازې هغو اوامرو ته اعتنا کوله ، کوم چې د ده ګټو سره مطابقت کاوه . (۱۲) د پادشاه د قدرت د کمزورې کېدو له پلوه ځينو حاکمانو په لرې سيمو کې ځانونه داسې احساسول، لکه چې دوی بخپله د دې سيمو پادشاهان وي . د مثال په توګه د

په منځ کې ویشلې او د مظفرآباد ښار شاوخوا ځمکې یې د خپل ځان لپاره پرېښې وې. (۱۳)

شاه زمان کوشش وکړ، چې فیوډالي انارشي له منځه یوسي او په دې ترتیب امپراتوري د زوال نه بچ کړي. سید قاسم رښتیا لیکي چې: ده غوښتل چې د قبایلو خانانو نفوذ له منځه یوسي، کوم چې په هیواد کې د فیوډالي انشعاب سرچشمه ګڼله، او مرکزي قدرت محکم کړي. (۱۴) شاه زمان ډېر کسان ووژل، د ډېرو کسانو جایدادونه یې ضبط کړل، د ډېرو سردارانو او بانفوذه کسانو څخه یې پلارني جایدادونه دولتي کړل یا یې داسې پردیو یا وړو کسانو ته ورکړل چې هغه هر وخت د ده په خدمت کې وو.
شاه زمان په دې فکر شو چې د کابل څخه لاهور ته پایتخت نقل کړي (۱۵)

دا کار د دې سره تړلی و، چې شاه زمان غوښتل په هند کې فتوحات له سره پیل کړي. د ده د دې فکر سره افغاني مشهورو او بانفوذه کسانو مخالفت کاوه. په دې ترتیب سره شاه زمان مجبور شو چې خپل فکر وګرځوي. د شاه زمان سیاست د درانیو خانانو ترمنځ نارضایتي راوپاروله. ځکه چې دمخه وویل شول، د ده په ضد توطئه جوړه شوه او د دې توطئې په سر کې د بارکزایانو د قوي قبیلې مشر پاینده خان ولاړ و. توطیه کشف شوه، توطئه ګران ووژل شول اما شاه زمان

13— Ibid., P. 40.

سید قاسم رښتیا، افغانستان مخ

ونه کولای شول چې خپله وضع ټینګه کړي. د شاه زمان د حکومت او
پسو بې دریغه سوغاتونو، لوړو نومونو او القابونو یوه هم
ونه کولای شول، چې دده سره مرسته وکړي.
د پاینده خان زوی فتح خان او نور ناراضه سرداران په ایران
کې د پټ شوي شاهزاده محمود حمایه پیل کړه شاه محمود د شاه زمان رقیب
نتیجه دا شوه چې شاه زمان له تخته وغورځول شو او روند یې کړ. شاه محمود
د درانیانو په ستره امپراتورۍ باندې قبضه وکړه. د خو درانی تاج په سر
کړ، وای په حقیقت کې د دې سردارانو د لوبو لیز که و، څه وخت وروسته
شاه محمود له تخته کوز کړ شو او په ځای یې د شاه زمان سکه ورور شاه شجاع
کښېنول شو. دې پول د درباري کودتاوو دا موقع برابر وله چې اشرافو
سردارانو ته د دولت د خزانې پاتې برخه ورووېشي هغه لویه خزانه چې
احمدشاه دراني په وخت د هند له فتوحاتو په نتیجه کې جوړه کړې وه په بدې ترتیب
سره وروخوړیده. دراني پادشاهانو ته چې نه خزانه وه پاتې وه، نه
قوت او نه قوي اردو، نو مجبور وو، چې د قوي دراني سردارانو د لاس
وسله شي د ولایتونو حاکمې په واقعیت کې ازادې سرداری ګرځېدلي
وې. په ۱۸۱۰ کال کې د ملتان حاکم مظفر خان چې د سکانو په
مقابل کې یې د مرکزي حکومت هیڅ مرسته نه شوای ترلاسه کولای،
نو یې د شرقي هند تجارتي کمپنۍ جنرال ګورنر سره په خبرو پیل
او هغه ته یې د خپل مقابلت پیشنهاد وکړ (۱۷)

جهان دادخان نورزی د اټک حاکم دا ټک مهمه ستراتیژیکی نکته د پنجاب په مهاراجه رنجیت سنګ باندې خرڅه کړه .

د درانیانو په امپراتورۍ کې فیوډالي انارشي په ټوله قوت سره حکمفرما شوه ، د قبایلو په منځ کی داخلي جګړې و او ټکر و نو قوت واخیست . د افغانستان له لاری بین المللی تجارتی لارې د زوال سره مخامخ شوه . پداسې شرایطو کې واقعي قدرت په کلي ډول دخو قویو افغانی قبایلو په منځ کې تقسیم شو چې د دې قبایلو په منځ کې تر ټولو قوی د بارکزیانو قبیله وه . د دې قبیلې په سر کې فتح خان ولاړ و . خلکو ده ته د تاج بخش لقب ورکړ (۱۸) دا ځکه چې ده د افغانستان تاج او تخت د احمد شاه د وارثانو څخه کله یو او کله بل ته ورکاوه .

هغه سیمې چې احمد شاه د دراني نیولې وې یوه په بله پسې کاله ازادې اعلانیدلې او کله د قوی همسایه هیوادونو لاس ته ورتللې . سند ، بلوچستان بهاولپور ، خراسان او د جنوبي ترکستان سیمې : د افغانی واکدارانو له لاسه ووتلې . د آباسین په څنګ غاړه د پښتنو ځمکې د رنجیت—

د افغانستان په سیمو کې چې احمدشاه حکومت قایم کړی و د اجتماعي - اقتصادي شرایطو په بنا له هغې سیمې نه تر بل ځای زیات تضادونه راپورته شول.

په افغاني ټولنه کې د فیوډالیزې پروسه د اقتصادي او اجتماعي شرایطو په بنا په داسې برمخ تللو سیمو کې لکه: کندهار، کابل، پېښور، جلال آباد د دې سبب شوه چې هلته افغاني فیوډالي روابط نسبت نورو سیمو ته د ځمکې په تمرکز کې قوت پیدا کړي. اداري ارګانونه چې د خپلې - قبیلې په اساس جوړ شوي وو، نو یې د وخت غوښتنو ته ځواب نه شو ورکولای.

د درانیانو د امپراتورۍ عصر پای ته ورسېد. د دې امپراتورۍ په ټوټو باندې خو مختلفې سرداري جوړې شوې چې په یوه واحد دولت کې د هغوی راټولول یو ازې په نویو تاریخي شرایطو کې تر سره کېدای شول. د دې سره سره د درانیانو امپراتورۍ زمانې د افغانانو په راتلونکي تاریخ باندې ډېر زیات تاثیر پرېښود.

د درانیانو امپراتورۍ وروسته تر مستقیمې اداري لاندې داول وار لپاره د افغانانو ټولې ځمکې په یوه واحد دولت کې راټولې شوې. د هغه خاطره نن ورځ هم په افغانستان کې ژوندۍ ده.

# غلطنامه

دمحترم ولوستونکو څخه هیله کیږی، چی مخکی دکتاب له لوستلو څخه دغه غلطۍ سمې کړی .

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| ۱۸۵۲ | ۱۸۰۲ | ۵ | ۱۰ |
| گرېسا تف | کرېسا نف | ۵ | ۱۷ |
| ۱۷۵۶۴ | ۱۷۵۴ | ۵ | ۲۴ |
| ۱۲۵ | ۲۵۱ | ۵ | ۲۶ |
| وغړو | وغړواله | ۸ | ۲ |
| ختې | حتې | ۸ | ۶ |
| شکا پو. | شکارپور | ۸ | ۱۳ |
| اوائیلو | اوایلو | ۱۰ | ۷ |
| زهین خان | زین خان | ۱۱ | ۸ |
| سیا کلوټ | سیالکوټ | ۱۲ | ۴ |
| کشیمر | کشمیر | ۱۵ | ۵ |
| کشمر، | کشمیر | ۱۵ | ۸ |
| ۱۵۶-۱۵۵ | ۱۰۶-۱۰۵ | ۱۶ | ۷ |
| ج . فرستر | ج . فاستر | ۱۷ | ۱۸ |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| ۹۸ | ۹،۸ | ۱۹ | ۱۸ |
| پښو | په‌ښو | ۲۱ | ٥ |
| ۱۸۲۱ | ۱۸٦۱ | ۲۱ | ۱۸ |
| ۱۹۲۹ | ۱۸۲۹ | ۲۱ | ۲۰ |
| شا ولی | شاه ولی | ۲۰ | ۸ |
| مسینا یف | دینا یف | ۲۱ | ۸ |
| الفنتون | الفنستون | ۲۱ | ۱۱ |
| ۱۹ | ۱۹۰ | ۲۱ | ۲۲ |
| را نعی | را نغی | ۲۲ | ۱۱ |
| را نو ی | رتا نو ی | ۲۲ | ۱۷ |
| ۳۱۳ | ۳۲۳ | ۲۳ | ۱۹ |
| صفاویا نو | صفویا نو | ۲۳ | ۷ |
| املک ن | امکان | ۲۹ | ۷ |
| درنیا لو | درانیانو | ۳۱ | ۱۳ |
| قضائبه | قضائیه | ۳۲ | ۱۱ |
| ۸ص | ص ٦ | ۳۳ | ۱۹ |
| وو یلل | وویل | ۳۵ | ۸ |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
| --- | --- | --- | --- |
| اود | اوود | ۳۹ | ۷ |
| الفلتون | الفنستون | ۴۰ | ۱۸ |
| حمکران | حکمران | ۴۱ | ۱۹ |
| ۴۰ | ۶۵ | ۴۱ | ۱۸ |
| نظام الملك | نظام الملك | ۴۱ | ۲۱ |
| ټولنمی | ټولني | ۴۵ | ۷ |
| ورکیده | ورکړل کېده | ۴۶ | ۱ |
| ریپلی | ریپلی | ۴۶ | ۳ |
| وښه‌ی | وچی | ۴۹ | ۳ |
| اداو | ادا بو | ۴۹ | ۶ |
| راوت | راووت | ۴۹ | ۱۰ |
| هامیلټن | هاملټن | ۵۴ | ۲۳ |
| کورنه | کږ رونه | ۵۵ | ۵ |
| ساتللی | ساتلی | ۵۵ | ۱۵ |
| گرسیانف | گریسانف | ۵۶ | ۱۷ |
| ۱۶۶۹ | ۱۸۴۹ | ۵۷ | ۲۳ |
| ۴۴۳ | ۴۳۳ | ۵۷ | ۲۳ |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
| --- | --- | --- | --- |
| زیاتره | زیاتره | ٦٦ | ١٢ |
| استاباشی | استاد باشی | ٦٨ | ٧ |
| قوانیونو | قوانینو | ٧٣ | ١٩ |
| پلارواك | پلارواکی | ٧٦ | ٨ |
| پرگنه | پرگنه | ٧٩ | ١٧ |
| دریا | د ربار | ٨٢ | ١٢ |
| دهزارو | دهزارو و | ٨٨ | ٣ |
| مقام تو | مقاماتو | ٨٨ | ١٢ |
| لموني | اموني | ٩٠ | ١٣ |
| وستر | رستر | ٩٠ | ١٨ |
| ند | نه | ٩٢ | ٨ |
| بازی | باسیزی | ٩٣ | ١٣ |
| پدهوه | پد هو | ٩٦ | ١٠ |
| ترتیت | ترتیب | ٩٨ | ٧ |
| تحویلدلی | تحویلید لی | ١٠٠ | ٦ |
| علیده | علیحده | ١٠٥ | ٣ |
| ولایتوو | ولایتونو | ١٠٨ | ١١ |
| باند | باندی | [illegible] | [illegible] |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| هنی | یعنی | ۱۲۸ | ۱ |
| ولید ای | تولید لی | ۱۲۸ | ۱۱ |
| فنستون | افغنستون | ۱۲۸ | ۱۲ |
| الکه | ۲۲ اکه | ۱۲۸ | ۱۳ |
| تینگه | ټینګه | ۱۳۰ | ۱۳ |
| و نه بیز | وته بیز | ۱۳۵ | ۱۰ |
| کرتسا نف | گریسا نف | ۱۳۸ | ۱۹ |
| پا یس | پارس | ۱۳۸ | ۲۱ |
| منصبدراازو | منصبدارانو | ۱۳۹ | ۱ |
| کوښی | گوښی | ۱۵۲ | ۲ |
| لار | لاره | ۱۵۷ | ۸ |
| ولایونو | ولایتونو | ۱۶۱ | ۱۴ |
| ادوته | اردوته | ۱۶۳ | ۲۰ |
| نغږښتل | نغښتل | ۱۶۹ | ۵ |
| په په عمومی | په عمومی | ۱۶۹ | ۹ |
| معاصره | محاصره | ۱۸۱ | ۱۰ |
| زیات | ته زیات | ۱۷۳ | ۱ |
| منظموو پوځونو | منظمو پوځونو | ۱۷۳ | ۱۴ |

| نا سم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| مخی | مخی | ۱۸۶ | ۳ |
| شازمان | شاه‌زمان | ۱۸۷ | ۲ |
| ړی | کړی | ۱۸۹ | ۱۱ |
| رېو | رو ږېو | ۱۹۳ | ۶ |
| بخشښو نه | بخښو نه | ۱۹۴ | ۵ |
| دړی | دوی | ۱۹۴ | ۹ |
| بخښوشو نه | بخششو نه | ۱۹۴ | ۱۰ |
| خنترا لیزی | سنترا لیزه | ۱۹۷ | ۲ |
| دوسلی صفت | دوسلی په صفت | ۲۰۵ | ۱۰ |
| مخاخ | مخا مخ | ۱۰۶ | ۱ |
| ا [illegible] | ا ووادی | ۲۰۷ | ۱۳ |

# داعلامو فهرست

## دخلکو، ځایو، کتابونو اونورنوسونه(۱)

«الف»

«ب»

بو تکوف: ۱۶۷، ۱۷۵، ۱۸۳

بهانگی‌خان: ۱۴

بهاولپور (خ): ۹، ۱۰، ۲۲، ۶۷، ۹۱، ۹۴، ۱۳۱.

بهاول‌خان (رکن‌الدوله): ۹، ۱۰، ۹۰

«پ»

پارس (خ): ۳، ۴، ۵، ۲۰، ۲۸،

پانی پت (خ): ۶۹، ۱۲۶، ۱۵۰، ۱۵۳، ۱۵۶، ۱۶۷، ۱۷۲، ۱۷۶، ۱۸۱

پاینده‌خان: ۹۸

پاینده‌خان (سردار): ۱۰۳ ۲۱۵، ۲۱۶

پتربورگ (خ): ۳، ۱۶، ۲۰، ۲۱، ۹۰، ۱۰۸، ۱۱۴، ۱۸۴.

پنجاب (خ): ۸، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۷، ۲۲، ۲۹، ۶۲، ۶۵، ۸۸، ۱۲۰، ۱۲۸، ۱۲۹، ۱۴۵، ۱۶۶، ۱۷۰، ۱۹۶، ۲۰۰، ۲۱۴.

پنجشیر (خ): ۹۵، ۱۳۰، ۱۴۱

پنجکوړه (خ): ۹۶

په‌ختیځ کی د عیسویانو حقوق (ک): ۱۱۴

پېښور (خ): ۲، ۳، ۳۹، ۵۹، ۶۳، ۷۱، ۷۹، ۸۲، ۸۷، ۱۰۲، ۱۱۵، ۱۲۹، ۱۳۰، ۱۳۲، ۱۳۳، ۱۹۳.

پیر محمد کراولی: ۱۰۸

«ت»

«س»

سالتیج (خ): ۹، ۱۷

سامین: ۱۲۵، ۱۳۵، ۱۵۲، ۱۷۰، ۱۷۳

۱۷۵

ستپور (خ): ۹

سدو: ۲۵

سراج التواریخ (ک): ۳، ۴، ۷، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۵، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۶، ۳۰، ۳۲
۳۳، ۳۷، ۳۹، ۴۱، ۴۴، ۴۶، ۴۸، ۵۳، ۵۵، ۶۹، ۷۲، ۷۹، ۸۰، ۸۵، ۹۱، ۹۲، ۱۲۷
۱۲۸، ۱۳۸، ۱۵۲، ۱۵۷، ۱۶۷، ۱۷۳، ۱۷۴، ۱۷۹، ۱۸۰، ۱۸۵، ۱۷۸، ۱۸۹، ۱۹۶

سردار محمد: ۵۶، ۱۷۷

سر ار ار خان: ۵۶

سرکار: ۱۲، ۲۸، ۳۰، ۴۱، ۱۵۱، ۱۷۴

سرهند (خ): ۱۱، ۱۲، ۳۹، ۵۹، ۸۳، ۸۹، ۱۲۹

سرینگر (خ): ۶۴

سعادت خان: ۱۴

سکر (خ): ۱۲۹ ۱، سلیمان: ۱۳: ۸۲

سلطان محمد خان درانی: ۳، ۱۰، ۱۶، ۵۵، ۸۹۰، ۹۹، ۱۵۷، ۲۰۴

سلطان محمد مراد خان: ۴۹

سلطان محمد خان: ۴ ۱۲

سنده (خ): ۸، ۹، ۲۲، ۲۹، ۹۱، ۹۴، ۹۵، ۱۲۵، ۱۲۸، ۱۳۱، ۱۳۳، ۱۵۲، ۱۶۹

«ښ»



«ص»



«ط»



« ع »

عمر سنگ: ۸۱، ۸۹

«غ»

غبار: ۲۶، ۲۷، ۳۱، ۳۹، ۴۲، ۵۰، ۵۵، ۹۶، ۱۱۴، ۱۲۰، ۱۲۱، ۱۲۲، ۱۳۶، ۱۳۷،
۳۹، ۱۶۹، ۱۸۰، ۱۸۲، ۱۸۵، ۱۸۸۔

غزنی (غ): ۲، ۳۰، ۶۲، ۶۳، ۷۹، ۸۲، ۱۱۱، ۱۲۰، ۱۳۲، ۱۳۸، ۱۹۳۔

غزن خان ملیزی: ۹۸

غلام حسین مقتدر: ۵۲، ۵۷، ۱۵۴، ۱۵۵، ۲۰۴۔

غلام سرور: ۱۲۴، ۱۲۶، ۱۲۷، ۱۲۸، ۱۲۹، ۱۳۰، ۱۳۱، ۱۳۲، ۱۳۷، ۱۳۸،
۱۴۰، ۱۴۱، ۱۶۱، ۱۷۸، ۱۸۳۔

غلام محی الدین خان: ۱۳۶

غوربند (غ): ۷۹، ۹۵، ۱۳۰، ۱۳۲

«ف»

فتح خان (وزیر): ۹۸، ۲۱۶

فتح علی شاہ: ۶

فاستر: ۴، ۱۴، ۱۷، ۱۸، ۳۳، ۴۴، ۴۹، ۵۴، ۵۵، ۵۸، ۵۹، ۶۱،
۶۱، ۶۳، ۸۹، ۱۱۷، ۱۲۲، ۱۲۳، ۱۲۵، ۱۲۶، ۱۳۰، ۱۳۱، ۱۳۴، ۱۳۷، ۱۳۸،
۱۶۱، ۱۶۹، ۱۸۹، ۱۹۰، ۱۹۴، ۱۹۹، ۲۰۰، ۲۱۴

فراہ (غ): ۱۳۰

فرحت الناظرین (ک): ۱۳

فیض اللہ (حاجی): ۵۴

فریبی: ۷، ۱۸، ۱۹، ۲۶، ۳۱، ۳۴، ۴۱، ۴۳، ۷۱، ۸۲، ۸۹، ۹۲، ۹۵، ۱۲۱، ۱۵۷،

«گ»

نو تس ان افغانستان: (ک) ۱۷، ۴۵، ۵۶، ۵۸، ۶۲، ۶۸، ۷۲، ۹۶، ۱۰۴، ۱۱۱، ۱۱۸، ۱۱۱

۱۳۵، ۱۳۹، ۱۶۴، ۱۶۵، ۱۸۵، ۱۸۷، ۳

نو رالدین: ۱۵، ۱۶

نو ر محمد خان غلجی: ۲۶، ۲۷

«و»




و زیر ستان (خ): ۶۷، ۶۸

ر این: ۱۱۷، ۱۲۱، ۱۲۲

«ھ»

ھاملتن: ۴ ۵

ھر ات (خ): ۲، ۳۹، ۵۳، ۵۵، ۶۳، ۶۷، ۷۱، ۷۲، ۷۹، ۸۲، ۸۷، ۱۱۵، ۱۳۰، ۱۳۲

۱۳۳، ۱۴۱، ۱۴۲، ۱۴۵، ۱۸۰، ۲۰۴ ۔

ھز ار ہجات (خ): ۹۵، ۱۳۰

ھسٹری آ ف پر شیا (ک): ۴

ھسٹری آف پنجاب (ک): ۶۹، ۸۳، ۱۱۲، ۶۲ ۱

ھسٹری آف دی افغانز (ک): ۷، ۱۸، ۱۹، ۲۶، ۳۱، ۳۴، ۳۸، ۴۱، ۴۳، ۷۱، ۸۲، ۸۹

۸۹، ۹۲، ۹۵، ۱۲۱، ۱۵۷، ۱۷۲، ۱۷۳، ۱۷۹، ۱۸۲، ۱۸۵، ۱۸۹، ۰ ۱ ۲

ھسٹری آف دی سکھ (ک): ۱۷، ۱۱۶، ۱۷۹، ۱۹۰، ۲ ۹ ۱

ھسٹری آف کلات (ک): ۶، ۷، ۹۳

ھسٹری آف ھندو ستان: (ک) ۳۰، ۳۱، ۶۹، ۱۲۵، ۱۲۶، ۵۸ ۱ ۰۱

ھندو ستا ن (خ): ۱، ۲، ۱۱، ۱۳، ۱۵، ۱۶، ۲۴، ۲۹، ۳۰، ۳۶، ۵۲، ۵۳، ۵۵، ۶۲، ۶۴

هندو کش: ۱۸

همایون : ۸۲، ۵۸

هنری پوتنجر : ۸۷، ۹۳، ۱۲۴، ۱۲۵، ۱۸۸

هنری راولنسن: ۱۸۴، ۱۸۶، ۱۹۰، ۱۹۱، ۲۰۷،

هنری گیورگ کین: ۱۱۴، ۱۶۷، ۱۷۳

هنری و الیس بلیو : ۶۸، ۱۰۰، ۱۳۴، ۱۶۸

«ی»

یارکند(خ): ۱۶

یولدوز خان» ۲۰



# *The Duranis' Empire*

BY


U.W. Gankofsky


TRANSLATED BY


Associate Professor

Dr. Gul Mohammad Noorzai



THE ACADEMY OF SCIENCES